# مرکه او مرکي



محمد اسمعیل یون

۱۳۸۷ ل

# کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتــاب نــــوم: | مرکه او مرکې |
| لیـــکــــــوال: | پوهیالی محمد اسمعیل یون |
| خـــپـــرنـــدوی: | یون کلتوري یون |
| چـــاپـشـمـــېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لــومـــړی چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د لیـــکـــوال پرله پسې نومره: | (۲۵) |
| د خـــپـرنـــدوی پرله پسې نومره: | (۲۵) |
| کـــمــــپوزر: | ضیاءالرحمن ضیاء |

# نیولیک

# پر دې اثر يو څو لنډې خبرې

يـون صـيب تـه دې الله (ج) خيـر وركـړي چـې ددې كتـاب د تنظيم له لارې يې پخوانۍ خاطرې بيا راژوندۍ كړې.

ددې مركـو زيـاتره يـې پـه هيلـه مجلـه كـې خپـرې شـوې وې. (هيله) د هغه وخت په سختو شرايطو كې د ملي ګټو د ساتلو يو مورچل او د ملي ارمانونو يوه تر ټولو محبوبه خپرونه وه.

په دې كتاب كې د بېلابېلو هغو كسانو مركې راغلي دي، چې په خپلو مسلكونو او برخو كې د سر كسان دي. (يوازنى كس يكې زه يم چې د مركې زياتـه برخـه مـې تـر خپـل طبـي مسلك ډېره پر ټولنيزو او ملي مسايلو متمركزه ده. خو د هغه وخت شرايط همداسې وو، چې د هېواد د سرنوشت په باب له فكر كولو او څه ويلو نه څوك هم نه شو غافلېداى.)

په کتاب کې د نورو ښېګڼو تر څنګ یوه ډېره د ارزښت خبره دا ده چې د کتاب مرکې تنوع (رنګارنګي ) لري او د هر ذوق لرونکی لوستونکی پکې یو څه پیدا کولای شي.

د کتاب سریزه د مرکه لیکنې په برخه کې یو ډېر ښه او مرستندویه بحث دی او د ځوانو لیکوالو او ژورنالستانو لپاره د یو ښه لارښود او مرستندوی حیثیت لرلای شي.

زه خپلې خبرې ځکه نه اوږدوم چې د کتاب خپلې خبرې زما تر هغو ډېرې ارزښتمنې دي. له یون صیب نه تر مننې وروسته ستاسو درنو ورونو او خویندو نه هیله کوم چې دا کتاب د یو مهم اثر په توګه ولولئ او له نورو سره یې هم شریک کړئ.

په درنښت

ابراهیم شینواری

کابل، د ۱۳۸۷ کال د مرغومي ۲۲

## سریزه:

# مرکه او مرکې

مرکه په عامه اصطلاح خبرو اترو ته وايي، د ژورنالیزم په نومونه هم خبرې اترې مرکه ګڼل کېږي، خو په ژورنالیزم کې هدفمنو خبرو اترو ته مرکه ويل کېږي. مخکې تر دې چې مرکه د ژورنالیزم د یوه ژانر په توګه مطرح شي، په پښتو ژبه او پښتني ولسي ژوند کې په همدې او یا دې ته نږدې مانا کارېدله. جرګه او مرکه زموږ د کلتور او ټولنیز دود یو مهم عنصر دی، ډېرې شخړې او ستونزې په همدې جرګو او مرکو حلېږي.

د جرګو او مرکو قوت په دې کې دی، چې هلته د خبرو اترو زمینه برابرېږي او له دې لارې د شخړې غوټه خلاصېږي. دواړه لوري یو بل ته خپل دلایل او منطق وايي او د دې دلایلو د انطباق په نتیجه کې د ستونزې حل راوځي. افغانان او په تېره بیا پښتانه افغانان د خپل نوي ژوند برخلیک د همدې جرګې او مرکې له لارې پیلوي، کله چې یوه کورنۍ د خپل ځوان زوی د ژوند برخلیک ټاکي، نو لومړی فکر پر همدې کوي چې چا ته، څه وخت او څرنګه مرکه ور ولېږي، پر مرکچي هم ډېر فکر کوي، داسې یو څوک انتخابوي، چې ډېر مخور، ژبور، تجربه کار او د منطق په وسله سمبال وي، لکه له یو مهم شخص یا چارواکي سره چې د یوې ممې مرکې لپاره یو ډېر پوخ، مسلکي

او ژبور ژورنالیست ګومارل کېږي. د مرکچي له غوره والي څخه هدف دادی چې د مقابل لوري تمایل راخپل او په پای کې د هغه رضایت حاصل کړي. د سختو شخړو او ستونزو د غوڅولو لپاره د جرګه وال او مرکچي غوراوي ته ډېره پاملرنه کېږي، ددې علت دا وي چې دواړو خواوو ته دقیق معلومات وړاندې کړي او د منطق په زور د شخړې حل راوباسي. له دې څرګندونو څخه مې هدف دا و چې مرکې یا خبرې اترې په طبیعي ډول زموږ د ژوندانه په ټولنیز ډګر کې وې، خو کله چې ډله ییزې رسنۍ رامنځته شوې او هغو بیا پرمختګ وکړ، نو مرکه هم ورسره د ژورنالیزم د یوه ژانر په توګه مطرح شوه او د ژورنالیزم او د هغه د وسایلو د بنې په ودې او بدلون سره مرکې هم بېلابېل اړخونه پیدا کړل، خو د مرکې اصلي محتوا چې د خبرو اترو له لارې د هدفمنو معلوماتو ترلاسه کول دي، پر خپل ځای پاتې ده. مرکې ته په انګرېزۍ کې انټرویو (Interview) او په عربۍ کې (مصاحبه) ویل کېږي چې د ټولو محتوا همغه یوشان (خبرې اترې) دي. د ژورنالیزم له نظره له مرکې څخه موخه دا ده چې هم لوستونکو، اورېدونکو، لیدونکو او کتونکو ته د یوې پېښې یا مسالې په اړه د معلوماتو او هم د پېښې د سپیناوي سبب شي. مرکه معمولاً د ټولنې د بېلابېلو ډګرونو له مهمو شخصیتونو سره کېږي، خو پر مهمو شخصیتونو سربېره د ټولنې له عادي اشخاصو او د پېښو له عیني شاهدانو سره هم مرکې کېږي او د هغوی مرکې یا څرګندونې د پېښو د رڼاوي او سپیناوي سبب کېږي. په یوه

مهمه مسلکي، علمي، تخنيکي، سياسي او ټولنيزه موضوع کې طبعاً د همغې برخې له مطرح اشخاصو سره مرکې ترسره کېږي، ځکه چې همدا ډول اشخاص د موضوع د وضاحت ظرفيت لري، د ځينو ټولنيزو پېښو، اقتصادي پرمختګونو، جنګي حوادثو او طبيعي پېښو، د قربانيانو په اړه د عامو خلکو نظرونه او مرکې هم د زيات ارزښت وړ دي، په همدې خاطر مرکې د خپلې محتوا له مخې بېلابېلې بڼې غوره کوي، لکه خبري مرکه، تحليلي مرکه، علمي، سياسي، ادبي او نورې مرکې. د ژورناليزم د وسايلو د کارونې له امله هم د مرکې بڼې توپير کوي، د بېلګې په توګه د اورېدنيو (راډيويي) رسنيو لپاره ګړنۍ مرکه ډېر ارزښت لري، دا مرکه که د محتوا له پلوه هر ډول وي، خو بايد په ګړنۍ بڼه ځکه ترسره شي، چې د مرکوال شخص غږ ډېر ضروري وي. په دې حالت کې ژورناليست ته په کار دي چې په خپلې غږيزې وسيلې خپل ځان ښه ډاډمن کړي او مخکې تر دې چې مرکې ته لاړ شي، خپله غږ ثبتې وسيله ښه چک کړي، د مرکې پر مهال هم بايد خپل او د مقابل لوري غږ په لومړيو او وروستيو شېبو کې څو ځله چک کړي، چې غږ رښتيا هم ثبت شوی دی که نه او که ثبت دی نو څه ډول ثبت شوی دی؟ ښه به وي چې په دې برخه کې يو دوه خاطرې هم راوړم:

د بي بي سي يوه خبريال راته خپله کيسه کوله، ويل يې چې بي بي سي راته دنده وسپارله چې پېښور ته سفر وکړم او د نشنل عوامي پارټۍ له مشر، خان عبدالولي خان سره مرکه وکړم،

پېښور ته راغلم، له ولي خان څخه مې وخت واخیست، ښه په خوند مې ورسره مرکه وکړه او بېرته لندن ته لاړم، کله چې کمپیوټر ته کېناستلم او غوښتل مې د ولي خان مرکه له ټایپ څخه کمپیوټر ته ولېږدوم، نو مرکه اصلاً ثبت شوې نه وه، دې خبریال وویل، دا زما د ژوند او مسلکي کار په تاریخ کې تر ټولو بده خاطره وه. دی یو مسلکي او پیاوړی ژورنالیست و، پر خپل ځان او کار ډېر ډاډمن و، خو په ژورنالیزم کې پر حافظې او پر تخنیکي وسیلې له چک پرته باور په کار نه دی او که څوک یې کوي دا ډول ستونزې به ورته راولاړوي.

زه خپله خاطره هم لیکم: د طالبانو نظام تر رنګېدو وروسته ما غوښتل په افغانستان کې د افغان هندوانو او سکانو د ټولنیز ژوندانه په اړه یو راډیویي راپورتاژ جوړ کړم، له پېښوره جلال اباد ته راغلم او غږ ثبتوونکې وسیله (ټیپ) مې هم له ځانه سره راوړ، په ننګرهار کې مې د خپلو لیکوالو ملګرو په مرسته د ننګرهار مېشتو افغان هندوانو یو مشر پیدا کړ، په جلال اباد ښار د هندو د بزازۍ په دکان کې مې ورسره په ډېر خوند مرکه وکړه، هندو موږ ته د ګوړې ښه چای راوړ او په ډېر طبیعي ډول مو مرکه وکړه، د مرکې په پیل کې مې خپل او د هندو غږ هم چک کړ بیا مو مرکه پیل کړه، د مرکې تر خلاصون وروسته مو په مینه رخصت واخیست. د مرکې پر سهار مې پېښور ته د تګ پلان و، یو ځل مې زړه کې وګرځېدل چې راځه دا مرکه یو ځل

بیا چک کړه، ټیپ مې چک کړ، نورې ټولې مرکې په کې راغلې وې، خو د هندو مرکه په کې نه وه، ډېر زیات خپه شوم، بیا له خپلو ملګرو سره د هندو دوکان ته لاړو او په بښنې سره مې بیا ترې د مرکې هیله وکړه، هندو زموږ غوښتنه ومنله، خو دا ځل مرکه هغسې خوندوره او طبیعي رانغله لکه څنګه چې د مخه وه.

ددې دوو خاطرو له یادونې څخه مې مقصد دا و چې په ژورنالیزم کې له یوې خوا پر حافظې ډېر باور په کار نه دی، له بلې خوا پر تخنیکي وسیلې هم له چک پرته باور په کار نه دی. نو د اوریدنیو رسنیو لپاره غږیزه مرکه ضروري ده او د هغو ثبتوونکو وسایلو چک او دویم ځلي ازمېښت.

د چاپي رسنیو لپاره هم غږیزه مرکه تر یوه حده ضروري ده، خو ددې رسنیو لپاره اساسي ضرورت د مرکې لیکنۍ بڼه ده، غږیزه مرکه هم وروسته په لیکنۍ بڼه اوړي، ځکه اکثره وخت خبریالان د مرکې لپاره ځان سره ټیپ وړي او بیا وروسته مرکه له غږه لیک ته اړوي، کله کله مرکوال ته مخکې تر مخکې لیکلې پوښتنې ورکوي او هغه یې په لیکنۍ بڼه ځوابوي، خو ددې ډول مرکې یوه ستونزه داده چې له پوښتنې بله پوښتنه نه شي پیدا کولای، خبریال مجبور دی پر همغو پوښتنو بسنه وکړي، چې مخکې تر مخکې یې مرکوال ته ورکړې دي. لیکنۍ مرکې کله کله په دې ډول هم وي، چې خبریال له مقابل لوري پوښتنې کوي، هغه یې ځوابونه ورکوي او دی یې لیکي، په

داسې حالت کې کله کله خبريال ټول ځوابونه نه شي ليکلای، ځينې مهم ټکي ترې پاتې کېدی شي او زړه کې وايي دا به د حافظې په قوت وروسته وليکم، په دې ډول کله کله تر چاپ وروسته د مرکچي او مرکوال ترمنځ نانندرۍ رامنځته کېږي، په داسې حالت کې پر حافظې ډېر باور په کار نه دی. په هر ترتيب د چاپي رسنيو لپاره د مرکې ليکنۍ بڼه په کار ده.

په ليدنيو رسنيو کې چې هم اورېدل کېږي او هم ليدل کېږي، هلته د مرکوال تصوير او غږ دواړو ته جدي اړتيا ده، که يو له دې دوو برخو څخه کم وي، مرکه نيمګړې ده، لکه که غږ وي، خو ژوندی تصوير ورسره نه وي، نو د مرکې نيم ارزښت کم شو او يا تصوير وي خو د هغه خبرې د خبريال له خوا ويل کېږي او تصوير د هغه شخص ورسره ښکاره کېږي، دا مرکه هم نيمګړې ده، البته په ليدنيو رسنيو کې کله کله د مرکوال خبرې د ژباړې د ضرورت په حالت کې ژباړل کېږي او له تصوير سره يوځای کېږي، خو په نورو حالاتو کې طبعاً غږ او تصوير دواړو ته ډېر ضرورت دی.

په کتنيو رسنيو کې لکه بېلابېلو ويبپاڼو او د انټرنيټ نورو اسانتياوو کې چې مرکه هم ليدل کېږي، هم لوستل کېږي، هم کتل کېږي او هم اورېدل کېږي، د مرکو له پورته ټولو ډولونو څخه کار اخيستل کېدی شي، خو د دې لپاره که څوک غواړي په انټرنيټ کې يوه مرکه په بشپړ ډول خپره کړي، نو هم بايد غږيزه

بڼه ولري، هم انځوریزه او هم لیکنۍ، که څوک غواړي د یو چا د مرکې تصویري بڼه وګوري، هم کولای شي، که اورېدنۍ یې اوري هم باید زمینه ورته برابره وي او که لیکنۍ یې لولي هم باید اسانتیا ورته موجوده وي. ځینو خبري اژانسونو، نړیوالو راډیویي او تلویزیوني چینلونو له انټرنیټ څخه همدغه ګټه پورته کړې ده. د ساري په توګه د بي بي سي راډیو، خبرونه، تاسو د انټرنټ په مټ هم لوستلای، هم اورېدلای او هم لیدلای کتلای شئ، نو په دې ډول انټرنیټ ټولې هغه اسانتیاوې لرلای شي، چې د رسنیو نورې برخې یې په ځانګړي ډول لري.

مرکه د ګډونوالو د شمېر له مخې هم توپیر کوي، یو په یو (له یوه شخص سره د یوه شخص مرکه)، له یوه شخص سره د څو کسانو مرکه؛ لکه پریس کنفرانسونه او ځینې نورې خبرتیایي غونډې چې یو شخص معلومات ورکوي او نور پوښتنې کوي، له څو شخصیتونو سره د یوه خبریال مرکه لکه ګردي مېزونه چې په هغو کې یو خبریال له څو شخصیتونو سره مرکې کوي) او ځینې نورې مرکې.

خو مرکه که هر ډول وي هدف یې د معلوماتو زیاتول او د موضوع سپینول دي، په هر ډول مرکه کې ژورنالیست ته بویه چې تر هر څه د مخه پر موضوع حاکم وي او له هر هغه چا سره چې مرکه کوي باید نوې خبره ترې راوباسي، د موضوع په اړه باید خپله هم معلومات ولري او د یوه مسلکي شخص په توګه له

مرکوالو څخه پوښتنې وکړي، که خپله ژورنالیست پر موضوع حاکم نه وي او د مرکوال پر وړاندې په کمزوري دریځ کې وي، نو دا مرکه ښه او مطلوبه نتیجه نه ورکوي.
په همدې خاطر اوس په نړۍ کې د اختصاصي ژورنالیزم موضوع ډېره مطرح ده، ډېر ځله مو له بي بي سي او نورو معتبرو راډیوګانو څخه اورېدلي چې د بي بي سي او یا...راډیو د اقتصادي، سیاسي، ټولنیزو او سیاسي چارو خبریال، دا په دې مانا چې ژورنالیست پر ژورنالیزم سربېره د علومو په یوه بله برخه کې هم تخصص لري او کله چې د داسې موضوعګانو په باب بحث مطرح کېږي، نو د همغې تخصصي برخې خبریال د مرکې لپاره ورځي. په افغانستان کې لا ژورنالیزم د ودې په حال کې دی او موږ ډېر کم داسې ژورنالیستان لرو، چې د ژورنالیزم ترڅنګ په یوه بله برخه کې هم تخصص ولري. البته اوس یو ګڼ شمېر لیکوالو او د نورو مسلکونو خاوندانو د ځینو اقتصادي ملاحظاتو له امله ژورنالیزم ته مخه کړې، خود افغانستان رسنۍ لا دې مرحلې ته نه دي رسېدلي، چې په هره څانګه کې خپل مسلکي ژورنالیست ولري او یا دې هغه د مسلک پر بنسټ همغې مسلې ته وړاندې کړي؛ له یوه ژورنالیست څخه د خبرو او مرکو د بېلابېلو ډولونو لپاره کار اخیستل کېږي.
د مسلکي تخصص ترڅنګ یو ژورنالیست ته د مرکې ځینې نور مهم ټکي هم په کار دي، چې باید په پام کې یې ونیسي، په

مرکه کې د تر بحث لاندې موضوع ښه او هر اړخیزه شننه او له دې څخه مخکې تر مخکې د ځان ښه خبرونه، مرکې ته پوره چمتوالی، د مرکوال پر فکري لیدلوري پوهېدل، د تخنیکي وسایلو ارزونه او ځینې نور مسایل ضروري دي. د دې ترڅنګ د مرکې پر مهال ژورنالیست ته په کار دي چې تر ژورنالیستیکو اخلاقو پښه وانهړوي، رهبرې شوې، لمسوونکې پوښتنې او په قصدي ډول د مقابل لوري تر اغېز لاندې راوستل، د ثبت، برېښنا او تخنیکي وسایلو داسې کارونه چې د مرکې پر مهال د مرکوال ذهن بلې خواته واړوي، د ژورنالیزم له اخلاقو سره سمون نه خوري، ژورنالیست ته په کار دي چې خپل ناپېیلتوب وساتي او په داسې مهارت له مرکوال څخه خپلې مطلوبې خبرې راوباسي چې هغه يې د اظهار پر وخت پر ځان د فشار احساس ونه کړي.

د علمي، تخنیکي او ځینو معلوماتي مرکو پوښتنې دومره جانبي عوارض نه لري، خو د سیاسي، ټولنیزو، قومي او تاریخي مسایلو په اړه بحث او مرکې طبعاً ډېرې حساسې دي، هغه هم په داسې يو حالت کې چې يوه ګردي مېز ته د مختلفو نظرونو خاوندان راټول شوي وي، په دغسې ډله ییزه مرکه او بحث کې د ژورنالیست ناپېیلتوب ډېر ضروري دی. په افغانستان کې او سنۍ رسنۍ په تېره بیا تلویزیوني رسنۍ د ژورنالیزم د ناپېیلتوب اصل ته ډېره پاملرنه نه کوي، مونږ په

تلویزیونو کې داسې مرکې لیدلي، اوریدلي او خپله هم ورسره مخامخ شوي یو ، چې هلته ژورنالیست یا د خپروني جوړونکی خپله د یوه طرف په توګه مطرح وي. (اریانا ) تلویزیون تر ډېره حده د ناپېیلتوب اصل مراعتوي. (لمر ) او ( شمشاد ) تلویزیون هم دې ته ورته دریځ لري، خو څرنګه چې شمشاد او لمر تلویزیونونه تر ډېره بریده پښتو تلویزیونونه دي، نو پر شمشاد د پښتو پالنې تور پورې دی او لمر که څه هم پښتو تلویزیون دی، خو څرنګه چې دا تلویزیون هم د طلوع تلویزیون د چارو واکو له خوا سمبالېږي، نو ځکه خو پر لمر تلویزیون د طلوع د اثراتو تور پورې کېږي. شمشاد تلویزیون په مرکو کې په مشخص ډول ژورنالیست د طلوع هغه په شان د کوم ډېر څرګند او مشخص دریځ خاوند نه بریښي او یا لږ تر لږه په مرکه کې ځان ډېر دریځوال نه ښیي. خو طلوع، نور، نورین، تمدن او فردا تلویزیونونه د طرف پر ناروغۍ اخته دي. نور، نورین، تمدن او فردا تلویزیونونه خو ځکه بې طرفه نه دي چې په مشخصو اشخاصو او تنظیمونو پورې تړلي دي او د همغو ډلو او اشخاصو د عمومي نظریاتو او لیدلوریو څرګندونه کوي، خو طلوع تلویزیون چې ځان یوه ازاده رسنۍ ګڼي په واقعیت کې د ازادۍ اصل نه مراعتوي، اکثرو لیدونکو به د دوی خپروني په تېره بیا د ((ګفتمان)) خپرونه چې اکثره ګرمو سیاسي او نورو پارونکو مسایلو ته ځانګړې شوې، کتلې وي،

په دې خپرونه کې له ورایه ښکاري چې د ناپېيلتوب اصل نه مراعتېږي، نه يوازې ژورناليست لوری نيسي، بلکې کوم کسان چې د بحث لپاره رابلل کېږي د هغوی غوراوی هم د ناپېيلتوب له مخې نه وي. اکثره وخت دوه درې، څلور او ان پنځه کسان له يوې خوا وي، يو يا دوه له بلې خوا او ژورناليست هم د همغې خوا پلوي کوي، چې دوی مخکې تر مخکې هماهنګ کړي وي. ځينو کسانو ته مخکې تر مخکې د بحث موضوع ورکول کېږي او کېدی شي داسې هم شوي وي چې پوښتنې مخکې تر مخکې ورته ويل شوې وي او هغې خوا ښه تياری نيولای وي، خو دا بله خوا چې تلويزيون والا قصداً غواړي کمزورې وښودل شي، د موضوع په اړه معلومات هم مخکې تر مخکې نه ورکول کېږي او يا که ورکول کېږي نو وخت په کې کم وي، بله بې عدالتي دا وي چې د يوه لوري کسانو (د تلويزيون خوښې لوري کسانو ) ته ډېر وخت ورکول کېږي او مقابل لوري ته کم، که وخت پر يو تن د عدالت له مخې په مساوي ډول ووېشي بيا هم هغه غرضي لوری څو ځله زيات وخت اخلي، نو دلته د طلوع تلويزيون پر وړاندې څو پوښتنې پيدا کېږي: که په يوه بحث کې درې څلور تنه حتمي د يوه نظر خاوندان وي، نو بيا ښه ده چې ددې کسانو له جملې څخه يو تن را دعوت شي او يو تن هم له هغه بل لوري څخه، چې وخت پر دواړو په مساويانه ووېشل شي او هر يو خپل دليل ووايي او که

د یوه لوري، د ډېر شمېر کسانو ګډون بیا هم حتمي وي، نو ښه بیا دا ده چې مقابل لوري ته دومره وخت ورکړل شي چې د ټولو پوښتنو ته ځواب ورکړي.

زه او قدرمن استاد حبیب الله رفیع څو ځله له همداسې چلند سره مخامخ شوي یو، یو د دریو او یا څلورو پر وړاندې، خو د لوی خدای(ج) په فضل څرنګه چې زموږ خبره حق وه، نو د منطق او عدالت له مخې مو ورته ماته ورکړې ده، هر وخت چې ما په طلوع تلویزیون کې مرکه کړې او لیدونکو لیدلې، نو په سلګونو تلیفونونه راته د مننې او کورودانې په خاطر راغلي دي، ددې علت دادی چې زه د طلوع تلویزیون د بې انصافۍ پر وړاندې ودرېدلای یم، ما څو ځله د طلوع چلوونکو ته ویلي چې که موږ دې بحثونو ته راغواړئ، نو یا باید د دواړو لورو مرکوالو شمېر مساوي وي او یا هم که له هغه بل لوري زیات کسان راځي نو موږ ته دومره وخت راکړئ چې د هر یوه پوښتنو او نامشروع تردید ته ځواب ورکړو. هر کله چې په دې بحثونو کې د افرادو او وخت تساوي په پام کې نیول شوي او ژورنالیست تر یوه بریده ناپېیلی پاتې شوی، نو هغه بحث اتومات زموږ په ګټه تمام شوی، حتی داسې بحثونه هم موږ کتلي چې یو د څلورو پر وړاندې مطرح وو، دا ډول بحثونه بیا په ډېر زور د سانسور له زندۍ خلاص شوي. له دې څرګندونو څخه مې مقصد دا و؛ هغه رسنۍ چې زموږ په ټولنه کې د ازادو

رسنيو په نامه فعاليت کوي، په واقعيت کې هغه شان ازادې نه دي، چې ادعا يې کېږي.

په دې اثر کې چې تاسو ته د کومو مرکو د لوستلو بلنه درکوم، دا ما په تېرو لسو پنځه لسو کلونو کې له بېلابېلو شخصيتونو په تېره بيا له فرهنګي شخصيتونو سره کړي دي. دا مرکې اکثره د فرهنګي هدفونو او معلوماتو په باب شوي دي. سياسي موخې نه لري او يا هم سياسي هدفونه يې ډېر کم دي، ما په دې مرکو کې د ژورناليزم عامې ځانګړنې مراعت کړي خو د مرکې ټول تخنيکي اصول په کې ځکه نه دي مراعت شوي چې دا ما د خپلو ځانګړو فرهنګي ضرورتونو پر بنسټ کړې وې، هغه وخت زما هدف دا هم نه و چې دا مرکې به زه د يوه ځانګړي اثر په توګه چاپوم، خو او سمهال چې زه د خپل تېر کړي فرهنګي کار پر بيا ارزونې، اوډنې او راټولونې بوخت يم، پر دې مرکو مې چې کتنه وکړه، نو ډېرې په زړه پورې را ته ښکاره شوې، د دې مرکو د چاپ ضرورت په دې کې نه دی چې دا مرکې ما کړي، بلکې مهمه اړتيا يې دا وه چې په دې مرکو کې د دې مرکوالو له خوا چې زموږ د هېواد مطرح فرهنګي څېرې ګڼل کېږي، ډېر مهم مسايل بيان شوي دي. دا مسايل دومره ژور، مهم او په زړه پورې دي، چې نه يوازې او سمهال زموږ د ځوان پښت په درد لګي، بلکې راتلونکې پښت هم ترې ډېره ګټه اخيستلای شي. زما لپاره د دې کار بل علت دا و چې زه غواړم د خپلو

فرهنګيالیو د فکر هغه مجموعه چې په دې مرکو کې خوندي شوې، لاپسې خوندي کړم، بل هدف مې دا و چې دا مرکې لکه څنګه چې مې اشاره وکړه، ډېرې ګټورې دي، نه غواړم زما تر مړینې وروسته، بل څوک اړ شي د هغو د بیا د راټولونې ستړیا وګالي، پر ژوند هېڅ باور نه شته، هر لیکوال ته بویه خپل تېر هغه فرهنګي کار، چې په بیا چاپ ارزي په خپله سره راټول او د مجموعي چاپ له لارې یې له تیت وپرک حالته وژغوري او خوندي یې کړي، اوس خو دود دا دی؛ زموږ هر لیکوال چې له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړي له همغې شېبې بیا تر کلونو کلونو زموږ نور لیکوال د هغو د کړو کارونو پر بشپړولو مصروف وي او بیا یې هم نه شي بشپړولای او نه یې هم پوره خوندي کولای شي، نو هر لیکوال ته په کار دي چې لږ تر لږه تر پنځه کلن فرهنګي کاري بهیر وروسته خپل تېر کړی کار راټول، چاپ او خوندي کړي او د خپل کار، زیار راتلونکي نسل ته پرې نږدي.

دا مرکې چې تاسو ته وړاندې کوم اکثره یې له نن (۸-۱۲) کاله دمخه د هیلې مجلې په بېلابېلو ګڼو کې چاپ شوي او اکثره یې نږدې پر شلمه پوښتنه پای ته رسېږي، (شل) عدد ما قصداً د مرکو د پایته رسېدو لپاره ټاکلی، (شل) یوازې د ریاضي یو عدد نه دی، (شل) په پښتو کې دکره او بشپړ کار مانا هم ورکوي، دا کار ما شل کړ، یا ما خو شل کړه، دا دنیا چا شل

کړې نه ده او داسې نور، کله چې خپله ما دا مرکې راټولولې، نو خورا په تکلیف یې کړم، ما فکر وکړ هغه مرکې چې ما خپله کړي او خپله مې په مجله کې چاپ کړي او مجله مې هم خپله چاپ کړې، نو د هغو بیا راټولول ماته دومره ستونزمن شول، نو بل چاته به دا کار څومره ستونزمن تمام شوی وای؟ له دې څخه مې دا نتیجه واخیستله؛ ښه به وي هر لیکوال خپل کړی کار خپله سره راټول کړي او هغه لیکنې او فرهنګي کار چې پر بیا راټولولو او چاپ نه ارزي، ښه به وي چې لیکوال د خپل وصیت یا یادښت په ډول نورو لیکوالو ته ووایي چې زما دغه کار په بیا راټولولو نه ارزي، وخت پرې مه ضایع کوئ او که کوم داسې کار چې پر راټولولو او بیا چاپ ارزي او لیکوال یې په خپله د بیا چاپ او راټولونې جوګه نه وي، هغه دې ځوانو لیکوالو ته ولیکي، په دې ډول به زموږ راتلونکی نسل د چا د اثارو په راټولولو کې له ستونزو سره نه مخامخېږي.

ما د خپل تېر کړي فرهنګي د انسجام لړۍ پیل کړې او غواړم له خپل تېر کار څخه ځان بېغمه کړم، په دې مرکو کې چې د تېر کړي کار یوه برخه ده، ما هېڅ ډول لاس نه دی وهلای، یوازې کوم ځای کې چې کومه چاپي او املايي تېروتنه وه، هغه مې سمه کړې ده، نور مې هر څه پر خپل شکل پرې ایښي او د دې مرکو اصالت مې ساتلای دی، درانه لوستونکي کولای شي چک یې کړي ما له ځینو نورو اشخاصو سره هم مرکې کړې وې،

چې په نورو خپرونو کې په متفرقه توګه خپرې شوي ، خو اوس لاسته رانغلې، خو کومې چې مې ترلاسه کړې، هغه دادی ستاسو مخې ته ږدم، هیله ده زما دا وړاندیز چې هر لیکوال دې خپل تېر کارونه خپله منظم او خوندي کړي، د نورو لیکوالو د هڅونې سبب شي او وسني لیکوال د راتلونکو لیکوالو کارونه زيات او درانه نه کړي.

د همدې ارمان د برې په ارمان

په درنښت

پوهندوی محمد اسمعیل یون

ارګ، دجمهوري رياست ودانۍ، کابل- افغانستان

د ۱۳۸۷ل کال د مرغومي (۳) مه

# زه د هېواد فرهنګ ته ډېرې زياتې هيلې، اميدونه او انتظارونه لرم

عبدالمالک بېکسيار د هېواد يو پياوړی ليکوال او شاعر دی، کلونه کېږي چې له هېواد لرې په ډنمارک کې د مهاجرت ژوند تېروي. عبدالمالک بېکسيار د ژور ملي شعور او فکر خاوند دی. هيله



مجله يې په همدې نيت پيل کړه چې د هېواد ملي فرهنګ ته خدمت وکړي. دا مرکه د هيلې مجلې د لومړي کال په دويمه ګڼه کې چې د ۱۳۷۶ل کال له غبرګولي - چنګاښ سره سمون خوري نشر شوې او د هغه وخت د حالاتو ترګندونه کوي:

**تر هر څه د مخه را ته د دې مقولې له مخې چې ((چا ځان وپېژاند نو هغه خپل خدای ج وپېژاند)) لومړی ځان په څو کرښو کې معرفي کړه او بیا به پر نورو خبرو بحث کوو؟**

نوم مې عبدالمالک بېکسیار، د برې پښتونخوا اوسېدونکی او په پښتو ژبه او ادب کې مې د لیسانس تر درجې پورې زده کړه کړې ده.

**د شاعرۍ له غم لړلې او فکر وړې دنیا سره دې له کومه وخته راهیسې د ژوند مزي وتړل شول؟**

له **۱۳۵۹**ل کال راپه دېخوا په دې لټه کې یم چې شعر ولیکم او له **۱۳۶۲**ل کال راپه دېخوا مې د شعر په نامه پارکي د هېواد په مطبوعاتو کې خواره شوي دي.

**تر اوسه دې په دې برخه کې څومره بریالي ګامونه پورته کړي دي، له خپلې شاعرۍ راضي یې؟**

د بریاوو خبره به لوستونکو ته پرېږدو چې هغوی خپل قضاوت ور باندې وکړي او که ستا د پوښتنې موخه د کار کمیت وي نو د سوچونه او کړلېچونه تر نامه لاندې مې د شعرونو لومړی جونګ په همدې شپې ورځو کې په پېښور کې خور شو او که چېرې لوستونکو په خلاصه ټنډه ومانه نو د (سنځل ګل په شپو کې) بل د شعرونو جونګ راسره چاپ ته تیار پروت دی چې غواړم چاپ یې کړم او له

شعر څخه د رضایت چې کومه خبره ده هغه دا چې ته خپله هم شاعر یې او یو شاعر هم له خپله شعره راضي نه وي.

**د ځوانۍ په ښه ګرمه مرحله کې له هېواده په مهاجرت محکوم شوې او بیا د بېرو لیرو وطنونو ته لاړې، دې اوږده سفر ستا په فکري ژوند کې څه ډول بدلون راووست؟**

د ګران هېواد له تودې غېږې څخه لرېوالي او بیا په بېلابېلو هېوادونو کې پردیس ژوند، له هېواد، خلکو او ولس سره زما مینه لا نوره ژوره او اوږدې کړه او همدې لرېوالي او پردېسۍ زه د هېواد، خلکو، ازادۍ او نېکمرغۍ په اصلي مانو وپوهولم.

**هغه څوک چې په هېواد کې اوسېږي هغه له جګړې نه نیولې د نورو بېلابېلو عواملو له کبله خپل لړمون خوري او فریاد کوي او هغه څوک چې غرب ته تللي، د هغوی ځینې کسان هم په اصطلاح یو ډول ناشکري څرګندوي، ستا په نظر د دغو متضادو ډولنو ترمنځ د ژوند او فکر توپیرونه یو له بله څومره ښېګڼې او بدګڼې لري؟**

ستا له دغې پوښتنې سره ماته د (یو خوا پانړ، بل خوا پړانګ) متل را یاد شي. زموږ هېوادوال څه د هېواد دننه او څه بهر د سولې او

ارامي په ارمان دي او که خدای کول دغه ارمان ته به د طالبانو د اسلامي تحریک په رڼا کې رسو.

**هغه کسان چې په تېرو څو کلونو کې غرب ته په ډېره سختۍ لکه د صراط له پله نه چې تېرېږي ورتېر شوي او هلته استوګن دي. څه فکر کوئ چې هغه به کله بېرته هېواد ته راستانه شي؟**

سره له دې چې دغه پوښتنه په بېل بېل کس پورې اړه لري مګر بیا هم د هغې مینې، علاقې او همدردۍ له مخې چې افغانان یې له خپل هېواد سره لري زه دا په ډاګه ویلای شم چې که په ګران هېواد افغانستان کې واقعي سوله، امن او ډیموکراسي تامین شي نو یوه زیاته برخه پردېس افغانان به د هېواد غېږې ته راستانه شي.

**په غرب کې مېشته افغانان په عمومي ډول د خپل هېواد د فرهنګ د حال او راتلونکي په باب څه فکر کوي؟**

په غرب کې مېشته افغانان د ډېرو خلکو د غلطو ګومانونو پر خلاف د هېواد دفرهنګ د حال او راتلونکي په باب زیات اندېښمن دي.

**په غرب کې د افغانانو د فرهنګي فعالیتونو په باب لنډه رڼا واچوه!**

غرب ته د افغانانو د مهاجرت لومړۍ لسيزه يوه بې غږه، ځوړه لسيزه وه او که څه کېدل هم د شخص او يا ډلې په نامه وو، مګر نن سبا د خدای(ج) په فضل افغانان لګيا دي په پرديسۍ کې د مېشته کامونو او ولسونو په منځ کې خپل مقام او لوری ټاکي، يو زيات شمېر فرهنګي او ټولنيز فعاليتونه روان دي او هره ورځ د دغو فعاليتونو لمن لا نوره هم پسې پراخېږي.

دغه فعاليتونه د جرايدو، مجلو، اخبارونو، راډيوګانو، تلويزيونونو، ادبي او فرهنګي غونډو او نورو په بڼه ترسره کېږي.

**لکه څنګه چې درانه لوستونکي به هم خبر وي ستاسو په هلو ځلو او مالي لګښت دلته په پېښور کې د ((هيله)) په نوم مجله چاپ شوه چې لومړۍ ګڼه يې خلکو زياته خوښه کړه، لکه څنګه چې زه خبر يم د دې مالي لګښت ستا له لوري پرې شوی، که هلته نور افغان فرهنګيان ستا اقتصادي متې در ټينګې نه کړي نو دا دومره مالي بار به ستا ځاني ژوند له مالي پلوه ستړی نه کړي؟**

په دغه کار کې له ما سره په ډنمارک کې يو زيات شمېر فرهنګيان، فرهنګپال او ملي شخصيتونه مرستندوی دي، دا چې د لومړۍ ګڼې مالي لګښت يې ما پر غاړه اخيستی وو زما د خپلې ځاني علاقې پر اساس و او کېدی شي دا سې هم وشي چې موږ هر يو په وار سره د

يوې يوې ګڼې مالي لګښت پر غاړه واخلو، بلـه دا چې افغانان هېڅکله هم خپل خدمتګاران بېنوا نه پرېږدي، زما په ګومان افغان ولس ته کار نه دی شوی تاسې وګورئ د تاريخ په اوږدو کې چې چا دغه ملت ته ان يو ګام هم پورته کړی، نو بيا يې تر پېړيو پېړيو قدرداني شوې او عزت يې شوی او لا کېږي.

## په همدې اوسني زماني مقطع کې د هېواد فرهنګ ته هيله من يې که نهيلی؟

زه دهېواد فرهنګ ته ډېرې زياتې هيلې، اميدونه او انتظارونه لرم او دا کومه تصادفي خبره نه ده چې زموږ ددغه ناڅيزه فرهنګي زيار نوم ((هيله)) شو.

## ځينې کسانو او ډلو غوښتل چې پښتني فرهنګ او پښتو ژبه د اور او نابودۍ په سيند لاهو کړي. تاسو ددې ډول اشخاصو او ډلو نيتونو او ناوړه هيلې څنګه ارزوئ؟

تر کومه ځايه چې د پښتو ژبې خبره ده نو دا د يوه ژوندي څلوېښت مليونيزه ملت ژبه ده چې د نابودۍ هيله يې د ځينو اشخاصو سوچه حماقت او لېونتوب بولم او بس.

## لکه څنګه چې څرګنده ده پښتنو په افغانستان کې په تېرو دوو سوو کالو کې په عين حاکميت کې محکوميت هم تېر کړی دی، که څوک را بانديې ډېر

په قهر نه شي اکثره پښتانه واکمن چې په دې دورو کې تېر شوي هغه په خپله ژبه ګونګيان وو. په دې مانا چې په دربار کې يې نه پښتو ويله، نه يې ليکله او نه يې کاروله، البته ځينو پښتنو واکمنو چې په دې برخه کې د خپل زړه وينې خوړلي د هغو درناوی او د کار د ارزښت احترام به هېڅکله هم زموږ د ولس له زړه نه ونه وځي، تاسو څه فکر کوئ چې د پرديو ژبې او فرهنګي ښکېلاک او حاکميت ته به څه وخت د پای ټکی ايښودل کېږي؟

د پرديو ژبو فرهنګي ښکېلاک او حاکميت ته به هغه وخت د پای ټکی ايښودل کېږي، چې پښتو د کار وبار، ژوند، تعليم او دربار ژبه شي، په دغه هکله د هيلې د لومړۍ ګڼې له يوې مقالې څخه دا جملې را اخلم: ((زه په دې نه يم چې پښتو (۵۰۰۰) کاله تاريخ لري او که ۵ ورځې، خو زموږ ژبه ده پر موږ ګرانه ده او موږ يې په ارګ کې غواړو)) پاتې شوه د تېرو چارواکو خبره چې دومره مې زړه ترې ويزاره دی چې نه غواړم د هيلې پاڼې يې په نومونو او کړنو ولړم.

د طالبانو اسلامي تحريک په اړه څه فکر کوئ، دوی افغانستان له کومو لويو تراژيديو څخه خلاص

## کړاو ددې په مقابل کې د دوی نیمګړتیاوې کومې دي؟

د طالبانو اسلامي تحریک چې زه یې په ننګ او ناموس را اوچت شوی غورځنګ بولم، هېواد یې د غلو، داړه مارو، وطن پلورو او سمتي او ژبنیو جونونیانو له داسې یوه تاړاکه وژغوره چې تصور یې ان په انساني فکر محال و او هغه کومې کوچنۍ نیمګړتیاوې چې لا هم موجودې دي انشاءالله امو ته ددغه غورځنګ تر رسېدو به پای ته ورسېږي.

## که خدای مه کړه طالبان په اوسني وخت کې د همدې جوړ شوي ملي ضد ائتلاف له خوا ماته وخوري نو د پښتنو ژوند ته به په افغانستان کې څه پېښ شي؟

داسې به انشاء الله هېڅکله نه کېږي او که خدای مه کړه وشوه نو هغه د خوشال بابا خبره:

چا یې پلو له مخه پورته نه کړ
پــښتو لا هغسې بکره پرته ده

د هېواد په هره سیمه، دره او بانډه کې په سلګونو نور دغه شان غورځنګونه ویده دي.

**له طالبانو څخه د یو روښنفکره افغان په توګه د ملي ژبې (پښتو) او افغاني فرهنګ د ودې لپاره څه هیلې، وړاندیزونه او غوښتنې لرې؟**

د روښنفکر له کلمې څخه په هغه انډول چې په افغانستان کې کارول کېږي زما کرکه ده، خو د یوه افغان په توګه له طالبانو څخه دا غوښتنې لرم:

چې حق باید حقدار ته وسپارل شي او لکه د تېرو حکومتونو د دروغجنې وروری او مساوات تر نامه لاندې د هېواد د مطلق اکثریت (پښتون) کام فرهنګي او ژبني امتیازات د بې تفاوتۍ په ډنډ لاهو نه کړي.

پښتو ژبې ته چې د پېړیو په اوږدو کې ورته څه التفات نه دی شوی خپله خاصه پاملرنه وکړي او د یوه ژوندي څلوېښت ملیونیزه ټبر د ژبې او د ګران هېواد افغانستان د ملي ژبې په توګه یې درناوی پرځای کړي. په دې هکله یوه خاطره را یاده شوه او هغه دا چې په جرمني کې مې یوه سپین ږیري هېوادوال ته وویل چې کله به له خیره وطن ته ځو؟

نو په ځواب کې یې راته وویل:

کله چې نور راته د کابل په کوڅو کې څوک ((افغان غول)) نه وایي.

**اوس هم بېرته د ادب نړۍ ته! لکه څنګه چې ما ستا شعرونه لوستي اکثره په ملایمه، نرمه، پسته او**

## خوږه شاعرانه ژبه لیکل شوي، په شعر کې له اغزنې او قهرجنې ژبې څخه کار نه دی اخیستل شوی، ستاسو د دې برې راز په څه کې دی؟

زه نه پوهېږم چې دا برې دی او که ما ته خو زه فکر کوم د دې وجه به دا وي چې زه په خپله همدغه شان یو انسان یم او زما په نظر شعر په خپله همدغه شان یو مولود دی او باید وي.

بله وجه یې کېدی شي دا هم وي چې زه د سکوت او زندان د زمانې شاعر یم او د هغې زمانې د شعرونو غټه تقاضا همدا وه ځکه چې له دې بغیر یې بیا د چارواکو له نازک خاطر سره ټکر کاوه او د دغه ټکر سزا بیا دا وه:

چا وې چې ډلګۍ د لېونو څه شوه
ځینې یې ړانده شوه ځینې ژبه پرې

## او سنی ځوان ادبي بهیر څه ډول ارزوئ او د پرمختګ او نوښت لپاره یې څه وړاندیزونه لرئ؟

اوسنی ځوان بهیر له هغو مشکلاتو او کړاوونو سره سره چې ورپېښ دي تر ډېره د انسان زړه ته داډ وربښي. خو باید له یاده ونه باسو چې سوچه ادب او نږه شعر ته زموږ واټن د پخوا په تناسب یو ګام هم نه دی رالنډ شوی، لیکوال او شاعران مو هماغه د پخوا په شان د شهرت او کتابونو چاپولو په مسابقه لګیا دي.

**د خپل شخصي ادبي ژوند یوه ترخه او یوه خوږه خاطره راته ووایه؟**

خوږه خاطره همدا اوس یاد ته نه راځي، ترخه خاطره دا چې تر ډېره عمره وروسته همدا تېر کال زه په دې وپوهېدم چې زما پلار محترم زما د شاعرۍ مخالف دی.

**د ازاد شعر په باب ستاسو خیال څه دی، پښتو کې د هغه حال او راتلونکی څه ډول ګورئ؟**

زه ازاد شعر ته خاص عقیدت لرم او په پښتنو کې ورته یوه ښېرازه راتلونکی وینم او هیله من یم ازاد شعر په پښتونخوا کې داسې ریښې وکړي لکه غزل.

**او وروستۍ او شلمه پوښتنه مې دا ده چې د خپل هېواد او ولس د ښېرازۍ لپاره دې کومې هیلې په زړه کې وي هغه راته په لنډیز سره څرګندې کړه؟**

زه هیله من یم چې ډېر ژر به موګران هېواد افغانستان د سولې او نېکمرغۍ په لمن کې سا واخلي، د بیا ودانۍ کار یې په ډېره چټکۍ پیل او په علمي، ادبي، سیاسي او فرهنګي ډګرونو کې له نړیوال کاروان سره همګام او پردېس افغانان بېرته خپل وطن ته راستانه شي او په لرې راتلونکې کې مې دا هیله ده چې افغانستان خپلې طبیعي پولې راخپلې او د یوه هوسا او سرلوړي افغانستان د جوړېدو پر لوري ټول افغانان لاسونه سره ورکړي.

## نه بدلېږمه افغان یم څو چې یم
## زه د ګران افغانستان یم څو چې یم

استاد حبیب الله رفیع د افغانستان لوی لیکوال او څېړونکی دی. پر ۱۳۲۴ل کال د افغانسان د



وردګو ولایت د سیداباد په ابدره نومي ځای کې زېږېدلی دی. په دیني مدرسو کې تر زده کړو وروسته یې په کابل کې د دارالتالیف د تاریخ ټولنې، فوکلور ټولنې، پښتو ټولنې د پښتو څېړنو او د افغانستان د علومو اکاډمۍ د غړي په توګه دنده سرته رسولې ده. یو وخت یې د ((پوهنه))، ((اریانا))، ((زېری)) او ((فوکلور)) خپرونو کې د مهتمم، مرستیال او مدیر په توګه هم دنده اجرا کړې ده. تر مهاجرت وروسته یې په اسلام اباد کې د افغانستان د جهاد ثقافتي شورا او په پېښور کې د افغانستان د جهادي څېړنو د مرکز، د افغانستان د کلتوري ټولنې، د افغانستان د تاریخ ټولنې او د افغانستان د مرستو مرکز د غړي په توګه کار کړی دی. دغه راز یې ((افغان جهاد))، ((قلم))، ((سپېدې))، ((افغانستان))، ((تلوسې)) او ((تعاون)) په مجلو کې د لیکنې ډلې د غړي او مدیر په توګه دنده ترسره کړې ده.

استاد رفیع (۱۱۰) ټوکه منظوم، منثور، تخلیقي او څېړنیز اثار لري چې د بېلابېلو علمي موسسو له خوا چاپ شوي دي. او نور هم پر علمي او څېړنیزو کارونو بوخت دی. مور دهیلې مجلې په دې (۱۳۷۸ل کال ۲) ګڼه کې له ښاغلي حبیب الله رفیع سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته را اړوو:

**اجازه راکړئ تر هر څه وړاندې ستاسو په ژوندون کې د نوي بدلون (بهر ته تګ او بېرته راتګ) په اړه پوښتنه وکړم، د دې کار بنسټيز لامل څه و؟**

ما ته په تېرو شلو کلونو کې بهر ته د تلو ګڼ چانسونه ميسر وو، تر هر څای وړاندې نارو ې ته د تلو زمينه راته برابره وه، په **۱۳۶۵**کال د مصر په راډيو کې د مصر د دولت له خوا رسماً د پښتو نطاق ټاکل شوی وم، خو تر دوو مياشتو وروسته بېرته راستون شوم، په ۱۳۶۸ کال امريکا ته يوه مياشت رسمي مېلمه وم او دوستانو راته ويل چې پاتې شه، زه بېرته راغلم، البته کاناډا ته مې د تلو توسن دا و چې په پېښور کې دوه درې کاله زما دوه زامن سره له دې چې لوړې نومرې يې درلودې د لوړو زده کړو له کولو نه بې برخې شول، زه د هغوی د زده کړو په خاطر ولاړم او د خپلو کارونو د کولو لپاره بېرته راغلم.

**په لويديزه ټولنه کې دې ځان څنګه احساس کړ؟**

زما له نظره انسان هغه کب دی چې د خپل کلتور په سيند کې ژوند کوي، نو څوک چې د خپل کلتور له سيند نه ووزي له همداسې يوه حالت سره مخامخ کېږي، ما همداسې حالت درلود د پخوانو تجربو له مخې مې همداسې حالت ته د څه وخت لپاره ځان چمتو کړی و.

**سره له دې چې تاسو د خپلو ځرګندونو له مخې په لويديزه ټولنه کې خوښ نه وئ، نو بيا ولې مو هلته تګ غوره کړ؟**

فکر کوم ددې پوښتنې ځواب به دوو پورتنیو ځوابونو کړی وي.

## په لویدیځ کې مېشتېدنه او د هغه ځای تابعیت منل د خپلې ټولنې پر راتلونکي باندې د بې باورۍ او نهیلۍ په مانا نه دي؟

یوه هېواد ته تلل او د یوه هېواد تابعیت منل دوې بېلې پوښتنې دي، ډېر داسې افغانان شته چې پنځلس شل کاله وړاندې بهر ته تللي، خو د بل هېواد تابعیت یې نه دی منلی او زه خو اصلاً ټول عمر دا تصور هم نه لرم، چې افغاني تابعیت پرېږدم.

نه بدلېږمه افغان یم څو چې یم زه د ګران افغانستان یم څو چې یم

د کاناډا په باب باید دا هم درته څرګنده کړم چې هغه هېواد د مهاجرو ټولنه ده او د حکومت او قانون جوړولو کار یې هم د مهاجرو په لاس کې دی، هغوی داسې قانون جوړ کړی چې هر کاناډا ته تللی کس کولای شي د خپل اصلي تابعیت په ساتلو سره کاناډایي تابعیت هم ولري. زه په مونټریال کې اوسېدم، دا د فرانسویانو سیمه ده او د کیوبک په ایالت کې لس ملیونه فرانسویان ژوند کوي تر دې چې دوی د خپل ایالت لپاره خپلواکۍ هم غواړي خو دوی ځان ته فرانسوي کاناډیز وایي او د خپل اصلي تابعیت له ساتلو سره کاناډایي شوي دي. دا یوه یادونه وه زه اصلاً ددې نیمه تابعیت ترلاسه کولو نیت هم نه لرم او له همدې امله په ټریول ډاکومنټ (سفري سند ) مسافرت کوم.

تاسو ته ښه څرګنده ده چې زموږ په ټولنه کې اوس د پوهې او هنر خاوندان او یا قلموال د استهلاک، اختناق، سکوت، شاتګ او د ډول، ډول فزیکي خطرونو له ګواښ سره مخامخ دي، خو که لو یدیځ ته لاړ شي مانیز او کلتوري ژوند یې مسخه کېږي خو د فزیکي ژوند د ښېرازۍ امکان یې شته، نو ستاسو په اند په دې دواړو لارو کې باید کومه یوه غوره شي؟

دا سمه ده خو اصلي خبره داده چې دا شل کلن ناورین خو عام ولس پر ځان نه دی نازل کړی ددې په راوستلو کې خو د همدې لوستو او روزل شویو کسانو لاس و چې عام ولس یې په سرو لنبو واړاوه، هره ډله خپله تجربه پرې کوي، بیا دوی تښتي او ولس په اور کې پرېږدي، خلقیانو او پرچمیانو به چې د امپریالیزم جهانخوار په کلمو خوله شلوله نن د همغه امپریالیزم په غېږ کې خپل عیش او عشرت کوي، اخوانیان چې غربي ټولنه به یې د فساد ځاله بلله نن همهغې د فساد ځالې ته ور زغلي او داسې نور روښنفکران او روښنفکرنمایان هم. یاد مې دي له ارواښاد پوهاند ډاکتر سید بهاءالدین مجروح نه بي بي سي پوښتنه وکړه: ته چې په پېښور کې ژوند او کار کوې د خطر احساس درسره نه شته؟ هغه په ځواب کې ورته وویل: زه ددې خوار ولس په پیسو روزل شوی یم که د مرګ

خطر وي هم زه به د دوی په څنګ کې وم او ددوی لپاره به کار کوم، تاسو ولیدل چې همدا سې وشول او د خپل ملت په څنګ کې یې قرباني ورکړه. ګڼ شمېر هغه افغانان چې ملي احساس یې ژوندی دی په خارج کې هم آرام نه دي او متاسفانه له راز راز روحي فشارونو سره لاس او ګرېوان دي. زما نظر دادی چې زموږ ټولنه د بدلون او د وضعې د تغیر لپاره خپلو روزل شویو زامنو ته اړتیا لري نو بهر ته د تلو د هڅې پر ځای باید د حالاتو د بدلېدو لپاره هڅه وکړو:

چې په لړه ګرمۍ شا کاندي و ګل ته
له دې بې وفا شبنمه ولې نه مرم؟

پورتنۍ پوښتنه عامه ده خو بې انصافي به وي که موږ د یو شمېر هغو لویدیځمېشتو افغان فرهنګیانو او فرهنګپالو خدمتونه هېر کړو چې د څو کلونو په بهیر کې یې ترسره کړي دي. دا لیکوال اصلاً د فکري بلوغ او پوخوالي په پړاو کې هلته لېږدېدلي نو ځکه خو یې ذهني مقاومت زیات دی خو د دوی بل نسل ته د مسخه کېدو زیات ګواښونه شته.

## تاسو د دوی او د دوی د راتلونکي پښت په باب څه نظر لرئ؟

زه په دې برخه کې ستاسو په شان خوشبین یم، دوی کار کړی خو انفرادي او یستوی دی، له دوی نه هیله دا وه چې یو لوی نړیوال سیاسي، کلتوري او اقتصادي بهیر یې را روان کړی وای او د افغانستان د وضعې د بدلون لپاره یې د نړیوال فشار په توګه کار ترې اخیستی وای، خو متاسفانه د دوی اکثره فرهنګي کارونه په

هېواد کې د تعصبونو د زیاتولو او د ژبنیو، سیمه ییزو او نورو ناروغیو اور ته د پوکي وهلو په ستنیو ولاړ دي او اکثره یو له بل سره لاس او ګرېوان دي. دوی زموږ روڼ څواک دی او باید د هېواد د نجات لپاره په ټوله نړۍ کې ارتباطي کړۍ جوړې کړي او دا لړۍ تر هېواده راوغځوي. پاتې شو راتلونکی پښت، په دې باب ما یوه مفصله څېړنه کړې چې دلته یې نه تکراروم او په لنډیز وایم چې یوه پېړۍ د دریو نسلونو پلار، زوی او لمسي لپاره تاکل شوې، زموږ غمېزه اوس ۲۱ کلنه ده چې دولس کاله نور پرې تېر شي د اوسنیو پلرونو نسل به خپل ځای کړوسیانو ته تش کړی وي او په بهر کې لوی شوي کړوسیان به یوازې دومره پوهېږي چې زما پلار افغان و او مسلمان و، بس.

اوس په پېښور او لویدیځ کې د یو شمېر افغان فرهنګیانو ترمنځ د فرهنګي ملګرتیا او کارونو لپاره د اړیکو یو هوایي پل جوړ شوی او د دوی په مالي مرسته دلته د یاد وړ کتابونه چاپېږي، که دا لړۍ همداسې دوام ومومي نو پښتو ادب او د هېواد فرهنګ ته به یې د ګټې څومره والی څنګه وي؟ او بل که چېرې د لویدیځمېشتو مالي مرستې پر همغه مناسب ځای ونه لګول شي نو عواقب به یې څه وي؟

په تپه تياره کې يوه کمزورې رڼا هم د موخې مخه ځرګندولی شي.
زموږ کلتور اوس په همداسې تياره کې را ايسار دی نو دا ډېر ګټور کار دی او زموږ د وران شوي او تالا شوي فرهنګ په سپېره شوې ورشو کې نوي بوټي دي چې پوره پاملرنه، څارنه او پالنه غواړي او که خدايه مه کړې دا مرستې بې ځايه ولګـــــولې شي او د شخصي دوستۍ او دښمنۍ او خويشخورۍ په چورليز کې ولوېږي نو بيا به ډېر ژر دا نوي نيالګي وچ شي او دا پل به ونړېږي.

ډېره ښښنه غواړم. زموږ ځينې ليکوال د پردې تر شا پر تاسو دا اعتراض او نيوکه کوي چې استاد حبيب الله رفيع د افغانستان يو ستر، هڅاند او زيار کښ ليکوال دی او موږ ترې د ډېرو سترو او لويو لويو کارونو هيله لرو چې تر ده پرته يې شايد د ګوتو په شمېر کسان تر سره کړای شي، خو په خواشينۍ سره چې استاد رفيع پر ډېرو کوچنيو شيانو مصروف دی چې هغه ډېر عادي ليکوال او ناظمان هم تر سره کولای شي لکه د وربښمو هغه چينجي چې په شمېر پوهېږي، ترانې او نښانې، چرس، نسوارو، پوډر او نورو شيانو ته نظمونه او داسې نور... تاسو خپلو مينه والو، لېوالو، پرتاسو حسابوالو او انتقاد کوونکو ته څه ځواب لرئ؟

تاسو پوهېږئ چې پر هېواد يو ورانوونکی سېلاب او توپان راغی چې هر څه يې ولړزول او وران يې کړل، په دې لړ کې زه هم ددې توپان د سرخسنۍ وم چې دا يوويشت کاله مې سرګردانه ساتي. ما په هېواد کې يو لوی کتابتون درلود چې په لسګونو زره کتابونه او مجلې او داسې آثار چې زما د څېړنو په درد يې خوړل په کې وو خو زه چې يوويشت کال مخکې له هېواده راوتلم له دې ټولو آثارو نه مې يوازې يوه کوچنۍ تذکره راسره وه چې په خپل جيب کې مې کښېښوده او راووتلم نو ددې منظم کتابتون له لاسه وتلو سره زما د منظمو څېړنو لړۍ وشلېدله، دلته هم د روزۍ وسيله د کمشنرۍ په سپېشل الاونس ( ځانګړې تنخوا ) او د تنظيمونو په نوکرۍ کې وه خو ما چې له خپلې خولۍ سره مسلات وکړ د يوه اجازه يې هم رانه کړه، د بازار مزدوري مې هم له لاسه نه کېده، خو د پېښور، د پښتو اکيډمۍ د هغه وخت مشر پروفيسور محمد نواز طاهر راته وويل: زموږ قلمي نسخې په دوړو او ګردونو کې پرتې دي، دا وګوره، کارډونه يې وليکه، موږ به د خپلو محدودو امکاناتو په رڼا کې په کارډ دوې روپۍ درکوو، زما لپاره دا کار د زړه د خوښې کار و او په دې توګه مې د يوه محدود جيب خرڅ امکانات ترلاسه کړل او بيا په قلم، افغان جهاد، سپېډې او تعاون مجلو کې د کار زمينه راته برابره شوه او د خپل ژوند ګاډی مې روان کړ. په دې ترتيب د ژوند سرګردانۍ او د کتابتون له لاسه وتلو د منظمو څېړنو زمينه رانه واخيستله خو بيا مې هم چې څه له لاسه کېدل هغه مې کول، ملي

مفکوره د ښې او کيڼ افراط د فشار له امله تر سخت تهديد لاندې وه خو ما له تهديد سره سره دا لاره پالله او پالم به يې.

راغلو دې ته چې زه ولې ماشومانو ته کتابونه ليکم، زما له نظره ورو ته د کتابونو ليکل ووړ کار نه، بلکې ډېر لوی کار دی او دې ته زه هغه وخت متوجه شوم چې څلوېښت کاله وړاندې مې په کابل کې د مصر په ثقافتي مرکز کې درس وايه، هلته د ماشومانو لپاره، په لسګونو زره کتابونه، مجلې، فلمونه او نور تفريحي وسايل موجود وو خو زموږ ماشومان په مطلق ډول محروم وو او يوازې د کوچنيانو زېغ او د ورو انيس هغه وخت په کابل کې خپرېدل زه هم هغه وخت وهڅېدلم او د ماشومانو آثار به مې له عربي څخه ژباړل او په افغاني خپرونو کې خپرول او دا اوسني چاپ شوي آثار مې لکه تمه، وو نه وو، د ورو هېنداره او نور د هغه وخت دي او دا زه خپله دنده ګڼم چې موږ خپلو ماشومانو ته پر درسي کتابونو سربېره بايد نور بوختوونکي آثار هم ولرو نو ځکه د ماشومانو لپاره د اثارو ليکل يوه لويه ملي اړتيا ګڼم او ان که ما له نورو کارونو نه باسي هم زه به دې کار ته ادامه ورکوم او هيله لرم دا سې ورځ راشي چې زموږ محروم ماشومان په خپله ژبه کې له خپلې سويې سره سم خواږه، خواږه کتابونه ولري.

## همدې پورتنۍ پوښتنې ته ورځېرمه يوه پوښتنه داده چې دا هم وخت نا وخت مطرح کېږي او د پرتلنې بڼه لري هغه دا چې ستاسو مينه وال او لېوال وايي

چې مور د څېړنې په برخه کې پر رفيع صاحب او هېوادمل صاحب زيات حساب کوو. هېوادمل صاحب په پېښور کې د څو کلونو په بهير کې د نورو کارونو ترڅنګ دوه ستر کارونه ترسره کړل؛ (( په هند کې د پښتو ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه او د پښتو نثر اته سوه کاله )) اثار يې چاپ کړل، خو استاد رفيع دې ته ورته کارونه ونه کړل او يا يې کړي چاپ کړي يې نه دي، تاسو په دې باب څه نظر لرئ؟

د خپلو څېړنو د منظمې لړۍ د شلېدلو په باب مې بره معلومات درکړل، خو زما او د ګران هېوادمل صاحب پر تلنه ناشونې ده، دی چې يو کار شروع کوي کلکه ملا ورته تړي او د کار تر پای ته رسولو پورې ملا نه پرانيزي خو زه بيا بوالهوس يم، يو کار شروع کړم هغه لا سر ته نه وي رسېدلی چې بيا بل کار ته لاس وغځوم، په دې ترتيب ګڼ کارونه کوم خو ټول نيمګړي پراته وي، ډېر کارونه هېوادمل صاحب د لرګي په زور راباندې ترسره کړي دي خو بيا هم په تېرو شلو کلونو کې بېخي بې کاره نه وم يو شمېر کارونه مې کړي چې ځينې چاپ او ځينې ناچاپ دي. په متنونو کې مې د ((دبير دانش)) په نامه د کليلې د منې يوه پښتو ژباړه په دوولس سوه مخونو کې تهيه او پښتو اکېډمۍ خپره کړه چې پراخه مقدمه او ګڼ تعليقات لري. د اخوند احمد ((ورک زوی څنګه پيدا شو؟))، د خوشال بابا

((فالنامه)) او ((وصیت نامه)) هم هغه متنونه دي چې چاپ شوي. همدا راز د پښتو اکیډمۍ قلمي نسخې او د پښتو نخوا او دنیا په کتابتونو کې پښتو قلمي نسخې دوه پېړ کتابونه دي چې چاپ ته چمتو دي، ((افغاني خپروني)) یو بل تاریخي تحلیل دی چې د چاپ انتظار باسي او همدا راز په افغانستان کې د ښځو د زده کړو، د عصري زده کړو او لویې جرګې په باب مې داسې رسالې لیکلې چې هېوادمل صاحب راته چاپ کړې دي د افغانستان لنډکی تاریخ پنځوس زره کاله په پنځوس پاڼو یو بل اثر دی چې ځوانانو ته لیکل شوی او همداسې د تمدن سوغات هم در واخلئ او نورې ګڼې رسالې خو بیا هم لکه تاسو چې وویل د منظم څېړنیز کار لړۍ مې شلېدلې ده او د خپلې ژبې او فرهنګ لپاره لېونۍ تلوسه لرم چې ډېر کار وکړم خو:

کله زه، کله مې یار، کله ریبار سست
ځکه شو زما د مینې کاروبار سست

لکه څنګه چې مو ږ او ځینو نورو لیکوالو ته څرګنده ده، تاسو د خپلو لیکنو او آثارو د خپراوي تر څنګ د ګڼ شمېر نورو لیکوالو آثار هم خپاره کړي او خپروئ یې، ددې آثارو سمون، ایډیټ، توري لوستنه او چاپ خورا زیات زحمت غواړي،

## زما په اند دا کار یوه لیکوال ته ډېر زیان رسوي. تاسو ته دي کار څومره زیان اړولای او دا مسئله څنګه ارزوئ؟

دا رښتیا هم ګران کار دی خو زما دوستان تر دې هم را باندې ګران او زورور دي، نه نه شم ورته ویلای ځکه دوی ته څرګنده ده چې زه د کتاب د سمولو او چاپ په برخه کې نهايي احتیاط نه کار اخلم نو ځکه رانه غواړي چې کتابونه یې ورته چاپ کړم او هم د مړو مشرانو او استادانو پر ځان حق ګڼم چې آثار یې چاپ او ټولنې ته وړاندې کړم، ته پوهېږې چې دمینې د نړۍ هر څه خوندور وي، دا زما مینه ده، ما ته په خپله ژبه د یوه کتاب زیاتون که زما وي یا د بل چا یو ډول ارزښت لري نو ځکه زه دا ټول کار بولم او ځان ته یې زیان نه ګڼم !

## اوس، اوس پر کومو فرهنګي کارونو بوخت یاست او راتلونکی فرهنګي پلان مو څه دی؟

اوس مې د افغانستان د فرهنګي خدمتونو اداره فعاله کړې او هیله لرم له دې لارې خپل فرهنګ ته د خپلو او د نورو درنو لیکوالو د آثارو د خپرونې له لارې څه نا څه خدمت وکړم. زما په خپلو ځانګړیو کارونو کې د پښتو نه، لس تاریخي متنونه شامل دي چې چاپ ته یې له سریزو او نښلونو سره تیاروم چې په اکثرو کې یې نوي تاریخي حقایق او خبرې شته.

## یو لیکوال څنګه کولای شي د فرهنګي او اقتصادي لېوالتیا ترمنځ انډول وساتي، فرضاً که اقتصادي لېوالتیا زیاته شي د لیکوال فرهنګي کار او د هغه اخلاقي شخصیت به څومره زیانمن کړي؟

دا په زړه پورې پوښتنه ده، یو لیکوال چې فرهنګي کار ته لاس اچوي لومړی هدف یې باید فرهنګي خدمت او د خپل فرهنګي کار ارزښت او د کیفیت لوړوالی وي، د پیسو ترلاسه کول یې باید ضمني اړخ وي او که فرهنګي کار د پیسو ترلاسه کولو لپاره کوي نو بیا ښه داده چې یوه بل مستقیم تجارتي کار ته لاس واچوي ځکه په دې صورت کې یې کار کیفي اړخ له لاسه ورکوي او اخلاقي شخصیت یې زیانمن کېږي.

## په فرهنګي کار کې صداقت او جرئت څنګه ارزوئ؟

فرهنګي کارونه داسې کارونه دي چې تر پردې لاندې نه کېږي هر څوک چې هر څه کوي د ټولنې له سترګو نه پټېږي زما له نظره د صداقت او جرئت ترڅنګ لېونی مینه هم غواړي او ملي بصیرت هم.

## په ځینې ملي مسایلو او لیکنو کې له ډېر احتیاط نه کار اخلئ دا احتیاط د مضر احتیاط له کبله دی او

## کـه نـه د یـوه پـوخ سـنجول شـوي فکـر او عقیـدې لـه مخې؟

ستاسو پوښتنه ډېره واضحه نه ده خو څرنګه چې په دې برخه کې مو په خوله ډېر بحثونه سره کړي نو ځکه غواړم په ډېر وضاحت ځواب درکړم او هیله لرم چې په چاپ کې څه ترې کم نه شي.

یون صاحب ستاسو د ژوند لیک له مخې تاسو یو کلن واست چې ما د ملي سیاست او ملي ایډیالوژۍ په ډګر کې قدم ایښی او دادی پوره دوه دېرش کاله وتلي چې پردې لاره روان یم، په دې لاره کې نه زه ویرېدلی یم او نه مې مضر احتیاط کړی، ما په ۱۳۴۸ل کال کې دا ټوټه لیکې وه:

مـنم وژلی مې شي خو چوپ کېدلی نه شم
لـه خـپل مـلي مرامه هېڅ تېرېدلی نه شم
د خپـل مـلت پـه مـخ کې قـرباني فـخر ګڼم
سر مـې بخښلی شمـه، حق مې بخښلی نه شم

چې بیا څو ورځې وروسته بندي شوم، یو ځل بیا هم د زندان مېلمه شوم، کمونستانو هم په همدې جرم(؟) زنداني کړم او دلته په پېښور کې مې هم دا شل کاله د همدې ملي مفکورې په درلودلو د ښیو افراطینو له خوا شپې ورځې ترخې وې او پـه هېـواد کـې ستمي حکومتونو هم په کاږه نظر راته کتل. زما لـه نظره افغانسـتان د ټولو قومونو ګډ کور دی، د افغانستان ملت له ټولو قومونو نـه جوړ دی، زه هر هغه څوک چې د افغانستان ملي ګټې، ملي خپلواکي او ملي وحدت ورته ګران وي افغان بولم، زه من حیث القوم د افغانستان یو قوم هم خاین او پردی نه بولم او من حیث الفرد هر څوک چې خیانت

کوي که پښتون وي، تاجک وي، ترکمن وي، ازبک وي، هزاره وي یا بل څوک خاین دی. په تېرو کلونو کې چې چا د ژبني، سمتي او قومي انتساب په نامه انسان وژني او جنایتونه کړي سره له دې چې دوی دا کارونه د یوه قوم د نمایندګۍ په نامه کړي خو زه دوی د قوم نماینده ګان نه ګڼم او نه د دوی جنایت یوه قوم ته منسوبوم، زما له نظره پښتو د افغانستان ملي ژبه ده او زه یې د پښتو د یوه لیکوال په صفت خدمت کوم، همدا راز دري هم د هېواد یوه رسمي ژبه ده او زه هیله لرم چې دري لیکوالان یې خدمت وکړي، همدا راز زه د بشري حق له مخې غواړم چې د هېواد د نورو ګڼو ولسي ژبو ویونکي ماشومان په خپلو مورنیو ژبې خپلې لومړنۍ زده کړې وکړي او سیمه ییز راډیو، تلویزیون او اخبار د دوی په ژبو خپروني ولري. زه د پوهاند سلطان شاه همام دا نظر هم غندم چې پښتانه افغانستان ته د هند له سیول نومي کلي نه راغلي او د تاجیکانو د وطن اشغالوونکي یې بولي او د ښاغلي سمسور افغان دا وړاندیز هم ردوم چې تاجیکان د پښتنو په سیمو کې وېشل او د دوی ژبه ورکول غواړي، همدا سې ډېرې تبعیضي نظر یې شته چې زه یې د ګران هېواد په زیان ګڼم او په واز کومې یې تردیدوم زه مضر احتیاط نه کوم، بلکې له افراط او په افغانستان کې له هر راز ویشاکي فکر سره مخالف یم او دا لاره ما په پاخه سنجش او د مالي او ځاني قربانیو په بدل کې ځان ته ټاکلې او:

(( په دې لاره به روان یم څو چې یم ! ))

او په همدې ورځو کې مې ان شاء الله د (( ملي زاویه )) په نامه یو کتاب راوتونکی دی چې دا مسایل په کې څېړل شوي او زما د ۳۲ کلونو وړاندې مقالې هم په کې شته.

## په فرهنګي کار کې ستاسو د هڅونې او ملاتړ له پلوه له پښتنو څخه خوښ یې او که نا خوښ؟

په دې لاره کې د افرادو له نظره له ورینو تندیو سره هم مخامخ شوی یم او له وړینو تندیو سره هم، د ځینې کسانو له خوا دښمنۍ هم راسره شوې، مخه مې هم نیول شوې. روا حقوق مې هم رانه تروړل شوي او د سیمه ییزو تعصبونو ښکار شوی هم یم، بالمقابل مهربانه او زړه سواند دوستان او استادان مې هم درلودل چې هڅولی او نازولی یې یم او من حیث المجموع پښتنو او افغانانو زما کار ستایلی او زما عاجزانه او مخلصانه کار ته یې د قدر په سترګه کتلي دي.

## لویې فرهنګي او ملي هیلې دې کومې دي؟

محرومیت او د نعمت زوال د سړي لوږه او تنده ډېره زیاتوي زما لویې ملي او فرهګي هیلې ډېرې زیاتې دي، لویه ارزو مې داده چې هېواد ارام او بشپړ امنیت په کې راشي او د وران وطن د ودانولو کار په بیړه او چټکتیا پیل شي، د پوهنې لمن په ټول هېواد کې خوره شي او د فرهنګ د ودې لپاره لویې ادارې په کار ولویږي او ټول هېوادوال په داسې انرژۍ او مینه کار وکړي چې د جګړې ناولې نخښې نښانې ډېر ژر له هېواد نه ورکې شي او موږ هم په دې یوویشتمه پېړۍ کې د نړۍ د هېوادونو په نړۍ کې د سیالۍ ځای ولرو، داخو لویې ملي او فرهنګي هیلې دي خو وړې او عملي هیلې مې دادي چې هر افغان له موجودو امکاناتو نه په اعظمي توګه استفاده وکړي او د فرهنګ د ورانې شوې موسسې په دېوال کې که یوه وړه خښته ایښودلای شي هم، کښېږدي.

ښښه غواړم یوه بله مسلک ډوله پوښتنه چې حل یې له تاسو نه هیله کېدی شي، په ټولیز ډول یوه لیکنه

باید کومې کچې ته ورسېږي چې د یو ((اثر)) په نوم یاده شي. ایا لس مخیزه، پنځلس مخیزه لیکنه او نور... په هره منځپانګه چې وي او په کتابي بڼه چاپ شي نو اثر ورته ویلای شو او که نه د یو اثر یا کتاب لپاره کوم ځانګړی نورم په پام کې نیول کېږي؟

هسې خو په لغوي لحاظ هره چاپي کتابچه اثر بلل کېږي او موږ او تاسو یې وینو چې په کتابښودونو کې راځي خو حقیقت دادی چې یو اثر باید تر لیکلو وړاندې د یوه مشخص هدف لپاره لیکل شوی وي، د ټولنې د ستونزو یوه غوټه پرانیستلې شي او په سلو مخونو کې لږ تر لږه پنځه مخه نوې خبرې ولري، که په یوه اثر کې د ټولنې اړتیاوې او خصوصاً نویوالی نه وي او تش تکرار وي تر مادي موجودیت پرته یې زما له نظره معنوي ارزښت نه شته، موږ ډېر وینو چې یوه ډېره لنډه مقاله تر ډېرو لویو او پنډو اثارو ارزښتمنه او ګټوره وي ځکه چې نوې خبرې، وړاندیزونه او بحثونه لري.

## روان فرهنګي بهیر څنګه ارزوئ؟

روان فرهنګي بهیر زما له نظره ښه او ګړندی دی، ځکه شل کلن ناورین وژونکې فرهنګي تنده رامنځته کړې او په ځانګړې توګه بهر ته تللي فرهنګیان چې د خپلې استوګنې په هېوادونو کې فرهنګي چټک بهیرونه ویني هڅېږي چې د دوی ژبه او فرهنګ هم باید له سکون نه راووزي او یون وکړي نو ځکه دا یون ګړندی دی خو د فلټر کولو عملیه یې غړنده ده، دا کار هم باید له کلتوري هڅو سره عیار شي او د مسوولانه برخورد او فرهنګي ګډو هڅو له لارې دا بهیر پیاوړی، غښتلی او منلی شي.

## پښتو ژبې او ادب ته باید د چیغو او نارو سورو پرځای څه وشي؟

نارې سورې ډېرې زیان اړونکي دي، ځکه نارې سورې د ژبې او ادب دښمنان راوېښوي او د روانو عملي کارونو لپاره خنډ کېږي. یو څوک چې په پټه خوله ډېر لږ کار هم کولای شي تر له نارو سورو سره مله لوی کار نه لوی او ګټور دی.

## د ځوانو لیکوالو د سالم پرمختګ او هڅونې لپاره کومې لارښوونې او وړاندیزونه لرئ؟

ځوان لیکوال باید مطالعې او اوربدنو ته زیات ارزښت ورکړي، د لیکلو په رامنځته کولو باید ځان ته مغرور نه شي چې ګواکې ډېلی یې فتح کړې دی، تل باید هڅه وکړي او د خپل هر کار په باب داسې قضاوت وکړي چې کار مې نیمګړی دی او باید د بشپړتابه هڅه یې وکړم. د ملي اړتیاو، وړتیاو او ملي ګټو په رڼا کې لیکل وکړي او خپلو هېوادوالو ته داسې نسخې وړاندې کړي چې شته ټپونه پرې پټې شي نه دا چې نور ټپونه ترې وزېږي. زما له نظره ځوان نسل د انقلاب نسل دی چې له دې ډلې څخه ځوان لیکوالان هم دي، تېرو شلو کلونو دومره پېښې لیدلي چې تېرو زرو کلونو نه دي لیدلي، نو ځکه دوی په لږ عمر کې له ډېر څه سره اشنا شوي او باید له دې هر څه نه پند او عبرت واخلي او د خپلې ټولنې په ګټه یې د خپل لیک په لمنه کې راونغاړي.

په مینه او مننه

# پوهاند زیار د پښتو لیکني
# او ژبني معیار مخکښ



دغه مرکه ما له نن څخه نږدې شل کاله مخکې (هغه وخت چې زه د پوهنتون د دریېم ټولګي محصل وم) له استاد زیار سره کړې وه او د همغه وخت د غوښتنو اوظرفیتونو څرګندونه کوي. دا مرکه (استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوري) کتاب کې چې پر ۱۳۷۲ل کال په لاهور کې چاپ شوی، خپره شوې ده. دا دی ددې مرکو په لړ کې دا هم خپروو:

۱- پوښتنه: ښاغلی استاد زیار! ما څو ځایه ستا د ژوند لیکونو په ترڅ کې چې ستا د چاپ شویو کتابونو پر دوو تنو (پښتیو) او ژوندون مجلې د

**۱۳۶۷ل کال په ۴ ګڼه کې خپاره شوي دي، ستا د خپلواکو څېړنيزو، ژباړيزو او زېږندويزو (تخليقي) اثارو شمېر ۱۳۰ او ليکنو (مقالو) هغه ۱۱۰۰ ښوول شوي، خو زما د لړو ډېرې پلټنې له مخې لومړی شمېر تر ۱۳۰ ټوکو هم تېری کوي، خو ستا د بېلابېلو ليکنو ټول شمېر مې د ورځپاڼو، جريدو او مجلو د کلکسيونونو د نشتوالي او نيمګړتيا له کبله پوره نه شو کړای په دغه برخه کې ستا غبرګون څه دی؟**

ځواب: څنګه چې زما د بېلابېلو ليکنو (مقالو) شمېر هم زياتره په ژورناليستيک فعاليت پورې اړه لري او په تېره بيا دا چې له ۱۳۳۸ ل کال څخه مې تر **۱۳۴۵**ل کال پورې د هېواد ورځپاڼې د خبريال په توګه زښتې ډېرې ليکنې خپرې شوي، نو دا کومه هېښنده خبره نه ده، چې د کلکسيونو نشتوالی او نيمګړوالی يې تا دغې پوښتنې ته اړ باسي. زه پوره باور لرم چې که دغه کلکسيونونه په لاس درغلي وای، هرو مرو دې زما ((شمېر)) ته د منني سر خوځاوه. څکه ښه مې په ياد دي، چې د ۱۳۳۸ل کال له ژمي بيا د ۱۳۴۱ل کال تر پايه د هېواد ورځپاڼې يوه ګڼه هم بې زما له ليکنې خپره شوې نه ده. آن داسې وخت راغلی، چې په بېلابېلو پور نومو (لکه مزينه وال، اخترخېل...) مې پکې تر درو ليکنو هم خپرې شوي دي؛ يو راپورتاژ، يوه مرکه او يا هم ورزشي او هنري تبصره، که نه يو ښاري

خبر خو به مې بې نومه هم پکې خپرېده. نو که په منځنۍ کچه مې یو ازې په هېواد ورځپاڼه کې د کال ۳۰۰ لیکنې خپرې شوې وي، نو یو ازې په نومورو درو کلونو کې د ژورنالیستیکو لیکنو شمېر نهو سوو ته رسېږي او همزمان ورسره په نورو ورځپاڼو او مهالنیو کې هم لږ تر لږه ۵۰ لیکنې ورسر باری شوې دي او دغه راز ژورنالیستیک فعالیت مې لږو ډېر تر دې دمه را رسېږي.

زه دا باتې نه وهم چې گونده زما ټولې ۱۱۰۰ لیکنې دې یو مخیزه علمي او څېړنیزې وي، دغه راز په پورتني شمېر کې زما ځینو هغو لیکنو هم غبرگون (دو بیلکیت) موندلی، چې په علمي سیمینارونو او غونډو کې مې اورولې او بیا وروسته په اړوندو غونډو ( مجموعو ) کې چاپ شوې دي او یا لکه ژبني هغه چې یوه زیاته برخه یې په ((لیکلار)) او ((وییپوهنه)) کې راغلې ده.

نو واړه واړه مطلبونه لکه سریزې، یادښتونه، کتنې، ارزونې یا تقریظونه هم په پورتني شمېر کې راځي، چې پر ځینو علمي تېزسونو او داستاني غونډونو مې کښلي دي او دا هم باید ووایم چې زما د لیکنو شمېر په دوه مخکې کلو اړه لري او نورې لیکنې مې همداسې رواني دي.

هرگوره، زما ادبي زېږندوېې ( تخلیقات ) تر نومورې شمېر دباندې دي، چې تا هم ورته ځانته جلا څېرکی ورکړی دی.

## ۲- پوښتنه: ستا د((ملي ريکارډ)) خبره ښايي پر ځينو کسانو دومره ښه ونه لګي، په دغه باب موڅه نظر دی؟

ځواب:((اختر څه پټ مېږه نه دی)) ترڅو چې پوهاند حبيبي ژوندی و، داحق مې ځانته نه ورکاوه، ځکه هغه ديو افغاني ليکوال او پوهاند په توګه په ټول افغاني فرهنګي تاريخ کې نه يوازې د مقالو او کتابونو د څومره والي له پلوه يو ملي ريکارډ ټينګ کړی و، بلکې په ځينو علمي څانګو، لکه تاريخ ليکنه او متن پوهنه کې يې څرنګوالی (کيفيت) هم په برخه و، خو تر ده وروسته په ټوله پازوالی (مسوليت)، په نورو مړو او ژونديو ليکوالو او څېړنوالو کې په څه د پاسه ۱۳۰ خپلواکو اثارو او ۱۱۰۰ مقالوسره ځان د ((ملي ريکارډ)) څښتن بولم، که څوک يې نه مني، ((دا ګز دا ميدان!))، ((که شپه تياره ده، منې په شمارديې)) په دې کې شک نه شته چې زما په خپلواکو ((کتابي)) اثارو کې ۱۰۴ توکه هغه ډګر څېړنې (فيلډ ريسرچونه) هم راځي، چې د هېواد د ۱۰-۱۴ ژبو پر ۱۰۴ ګړدودونو مې ترسره کړي دي او دچا خبره يوازې څېړنيزه او ډيتايي ښه لري، همداسې مې څرمه (ضمني) فولکوري څېړنې هم در واخله! خو بيا هم دا په زغرده ويلای شم، چې ما د دغو او مو توکو د علمي اوډون په لومړني پړاو کې هغه مهال کارنده برخه اخيستې چې د برن پوهنتون د شپږ کلنې زده کړيزې استوګنې په ترخ کې مې له خپل استاد پروفيسور ژارژ ردار او دوکتور شارل کيفر سره يوځای کړې

ده او هر ټوک به یې تر بشپړ اوډون وروسته زما په نامه له چاپه راوځي( د افغانستان د ژبپوهنې اتلس د پروژې په باب خو مې پر خپل ځای کې څرګندونه کړې ده ). له بلې خوا مې په خپلو ورځنیو لیکنو ، څېړنو او کتابونو کې هم له پورتنیو ډیټاوو څخه تل ګټه اخیستې او زما د ژبنیو او فولکوریکو څېړنو یوه غوره سر چینه بلل کېږي.

که ځینې راسره رخه لري او د ((ملي ریکارډ )) خبره پرې بده لګي، نه یې ته خوله ترلای شي او نه زه. دغه رخه یوازې له دې سرچینه نه اخلي چې ګوندې د چا خبره اړوندو کسانو ته زور ورکوي، بلکې له هغه نا باندیوالي تومنه اخلي چې دوی یې زما له خوا د ((پښتو لیکنې معیار )) او ((ازاد شعر )) له راپیل کړي غورځنګ او بیا نه ایلېدونکي انتقادي لوښې سره لري. له اروابښاد حبیبي سره زما د پرتلې په باب ستا بله پوښتنه هم دلته ځواب موندلای شي.

**۳- پوښتنه: له ډېرو ښاغلو مې اورېدلي دي چې ته د ځانګړې سیاسي او فرهنګي تګلارې له کبله تل ((چپي )) پاتې شوی یې او همدا نا رامه او نه ایلېدونکی چپي دریځ دې د لوړو دولتي څوکیو لپاره خنډ ګرځېدلی دی، ایا دا خبره سمه ده؟**

ځواب: زه به دا هم زیاته کړم ، کله چې په ناڅاپي توګه یوې لوړې څوکۍ ته رسېدلی هم یم، د همدغه دریځ له کبله ترې نه یوازې بېرته ژر لرې شوی یم، بلکې جزا مې هم لیدلې ده، یا زندان ته تللی یم او

بهر ته د خپلې ګروهې او دريځ، يا په بله وينا له ټاکلو ژوند آرونو ( پرنسيپونو ) لپاره مې د څوکۍ، بلکې د ژوند پروا هم ساتلې نه ده.
زه بـه هېڅکلـه داسې شـرايطو تـه سـر ښـکته نـه کـړم چې زمـا د ځانګړې سياسي او فرهنګي تګلارې او ټاکلي دريځ په بيه پريوځي. ښايي ډېر فرهنګپالان لرو ډېر دغـه راز نـه ايلېدونکی دريـځ ولـري، مګر ما په کړن کې زباتـه کړې ده او چا تـه مې شـک او خوخشـه پـرې اينبې نه دي. له بلې خوا په ټوله مانا د ټولنې او ژوند درښتينې څېرې په ځلونه کې زما ناړامه او بې پروا ((زړورتيا ، او ريښـتينتابه) بـس دي، چـې د وخـت واکمنـان رابانـدې کومـه پـوړۍ او څـوکۍ ونـه لوروي.

## ۴- پوښتنه: لکه څنګه چې تا ويلي دي (( ليکوالي زمـا د ژونـد يـو نـه جلاکېدونکی ټـوک دی )) همـدا اوس زما د منګ په انډول ستا روغتيـايي حالت ښـه بربښي، ايا کېدی شي، دا خبره د عمر تر پايه پوري پر ځان ومنئ !؟

ځواب: هسې خو هر څوک دا هيلـه لري، پـه پـوره روغتيـا سره يـو اوږد ژوند په مخ کې ولري او خپلې نيمګړې هيلې او ارمانونه د بري تر بريده ورسوي، مګر لـه مـا سره د روغتيـا او ژونـد اوږدتيـا هيلـه د همدې لپاره ملګرې ده چې وکړای شم، د ژوند تر وروستۍ سا پـورې لـږ تـر لـږه نومـوړی شـمېر اثـار پـه چـاپ ورسـوم او د خپـل پښـتني، افغاني او بيا يې د جهاني فرهنګ تاريخ ته وسپارم.

هر ګوره، له دې سره به زما ټولنه کارژمني خړوبتیا ونه مومي او غواړم ددغه اوډوني (تدویني) کار تر څنګه په درو ګونو (څېړنیزو، ژباړیزو او زېږندوییزو) ډګرونو کې هم خپل نه ستړې کېدونکی کارو زیار پر مخ یوسم. په ځانګړي ډول په ناپیلې (منثورې) زېږندیزې برخه کې همدا اوس بې شمېره اډانې (طرحې) او یادښتونه له ځان سره کښلي لرم چې په کور ناستی سره ورته د لنډ، منځنی او اوږد داستان (رومان) په بڼه رښتیاینه وبښم، هغه هم په دې آړ (شرط) چې تر هغې مې د ((پښتو لیکني معیار)) او هم ((پښتو ازاد شعر)) غورځنګ یو غوځ بشپړتیایي پړاو ته رسولی وي، دا اګاهانه او نا اګاهانه ((مخالفینو)) غوړونه دې کاڼه وي !.

## ۵- پوښتنه: ځینې کسان وايي: ((استاد زیار په خپله علمي، ادبي او همدارنګه سیاسي تګلاره کې له ښندې (افراط) څخه کار اخلي)) ته په دې کې څه وایې؟

ځواب: په یوه وروسته پاتي ټولنه لکه افغاني او په تېره پښتني ټولنه کې هر نوی ټولنیز او فرهنګي بدلون او غورځنګ هرو مرو له ناباندی سره مخامخېږي او ذهنیتونه راپاروي که به څه هم د دغې ناباندی او پارونې آرلاملونه (اصلي عوامل) ساده نالوستي پرګنې نه، بلکې تش په نامه ((روښاندان)) وي، چې د خپلو ارتجاعي ګټو په پار د دغو پرګنو له ساده ګی او نالوستی ناوړه ګټه اخلي. د ساري په توګه د ثور اوښتون ضد پارونې له آره له همدغه راز

شاتګ پالو او ځانساتو((روښاندانو)) څخه سرچینه اخلي او فرهنګي بدلون یا اوښتون خو چې د ټولنیز اوښتون یو نه جلا کېدونکی ټوک بلل کېږي، بیا په ځانګړي او سیده ډول د همدوی په خپل لاس له خنډ وځنډ سره مخامخېږي، له کلو راهیسې چې ما د ((پښتو لیکني معیار)) د رامنځته کولو لپاره غږ پورته کړی او ټولې هاندو هڅې مې ورته را ګومارلې دي، د وخت پښتو ټولنې ټیکه والو راپسې د مخالفت ببرغ را پورته کړی او هماغومره پلویان یې د ځان ملګري کړي، لکه څومره چې ما د ځان ملګري کړي دي، نودا څرګنده وه چې هغوی دغه غورځنګ د خپلې ټیکې لپاره خطر انګېره او څه یې چې له لاسه کېدل، ډډه یې ترې ونه کړه.

د دوی همدومره پروپاګند بس و، چې د ((ژبني معیار)) جاج له ((ژبني تصفیې(پیوریزم) )) سره په سپسته یې توګه ګډ کړي او د وخت واکمن ځواکونه او ځان ساتي توکونه اګاهانه یا نا اګاهانه زما او زما د لارو پر ضد راوپاروي. (د دغې ربړې په باب زما اړوند لیکنې او کتابونه هم په پام کې ونیسئ، همدا سې دنوي او ازاد پښتو شعر هاندو هڅې هم در واخله چې په راورستو څو کلونو کې مې ورته اوږه ورته کړې ده او ته یې ګوره چې تر پایه پورې مې څومره ځوان استعدادونه ملګرتیا کوي او یوازې څو زوړ خوښي مې مخې ته ودرېږي. د پښتو ټولنې د وخت ټیکه وال چې له لږو ډېر واک و ځواک سره د افغانستان د علومو اکاډمۍ ته په میراث پاتې دي. سره له دې چې د شعر او شاعرۍ سره دومره سر و کار هم نه لري، خو بیا هم له دغو زوړ خوښیو سره خپل پخواني ګرومونه

(کمپلکسونه) ګډوي. نو ته سوچ وکړه چې که دغه راز کسان راته ((افراطي)) ونه وایي، نور به راته څه ووایي. په سیاسي برخه کې هم د هر راز ((افراط)) تور بیا هم تر بل هر چا زیات له همدغو څخه آره اخلي او تصادفي نه ده چې دوی بېلا بېلې سیاسي ډلې ټپلې سره اچوي، ما له تا سره او تا له ما سره او خپله د ((اپولوتیستانو)) په توګه د خیر پر غونډۍ کېني. پاچا خان (عبدالغفار خان) چې په خپل ژغورنده سیاسي غورځنګ کې د ((عدم تشدد)) لار نیولې وه، بیا هم ګوډاګیانو ورته همدغه ټکی پلمه کاوه.
زه له دې هم منکر نه یم چې نژدې شل کاله ((د افغانستان د خلکو دیموکراتیک ګوند)) غړی پاتې شوی یم او د دوران سازې ایډیولوژۍ یو سخت پلوی، مګر کله چې دغه ګوند دولتي ځواک په واک کې راوست، له لومړۍ ورځې یې په بېلاربېلو پیل وکړ او زه یې هم په زندان وسپارلم. تر شل میاشتني زندیو او زندانونو وروسته چې د ګوند شړل شوې څانګه ((پرچم)) ډګر ته راغله او له ((خلق)) څانګې سره یې په سمه سمیا (فیفتي فیفتي) کې درېیم ځلې نیم بندیوالی وکړ، زما پر سترګو هم یو څه رڼا راغله او ازاده ساه مې واخیسته. د لومړي ځل لپاره مې د خپلو کتابونو په چاپولو لاس پورې کړ او ۳-۴ کاله مې یوه نیمه ځوکۍ هم وچلوله. دلته پرچمیانو ((امینیانو- تره کیانو)) ضد سیاست د ټولو پښتنو پر وړاندې را واخیست او د انتي پشتونیزم او پرو تاجکیزم بازار یې تود کړ. ما ولیدل چې نورې دواړې ډلې راته د زغم وړې نه دي، ((نه آشه ښه ده نه ګله، دوی دې وخوري یو تر بله)) او په برلین کې مې د استادۍ په

پلمه خپله استوګنه غوره وګڼله. پر **۱۳۲۵**ل کال مې له راستنېدو سره چې دوکتور نجیب الله د ګوند و دولت مشرتابه ته رسېدلی و، بیا هم په ګوند کې خپل غړیتوب وساته، خو کومه ورته ځپه چې د مخه راپیل شوې وه، نوره هم پسې تونده شوه او ورسره د شتو ټولونې سیالي دبډو او چور، غلا او خیانت، جاسوسۍ، هېواد پلورنې او په پای کې د هېواد د ټوټه کېدو پلان پخپله د مشرتابه د غړو له خوا شورو زور ومونډ، نور راته په ګوند کې پاتې کېدل په همدغو جرمونو کې شریکېدل وبرېښېدل او دهمدغو لاسوندونو په راوړنه مې خپله استعفا وړاندې کړه. مګر د ((ایډیولوژۍ)) د مثبتو او انساني اړخونو پلوي به مې د ژوند تر پایه کومه وټه ونه مومي.

له دې کبله بې سیاسته ژوند، په ژوند کې نه شمېرم او هنر او ادب هم د ژوند د یوه ټوک په توګه په سیاست پورې تړلی بولم.

**۲ پوښتنه: پر تا باندې تل دا انتقاد هم دی، چې ستا لیکلار ډېره ګرانه ده او په اسانه پرې څوک نه پوهېږي ایا دا انتقاد تر کومه ځایه سمون لري؟**

ځواب: لکه پاس مې چې وویل، ما پخپله د ((یوې، یوازنۍ، نګه، بشپړه، کره لیکنۍ پښتو)) یا لنډ ډول ((معیاري پښتو)) غورځنګ راپیل کړی دی، نو باید زما لیکلار د همداسې پېښو یوه ځرګندویه بېلګه وي او جوته ده چې زما لیکنۍ پښتو د نورو غوندې یوه لنډه تنګه سیمه ییزه پښتو نه ده، بلکې د ټولو سیمو، تاریخي متنونو او نویو رغاونو استازي کوي او یوازې په سلو کې

پنځه ویشت پورورییونه (دخیل لغات) را اخلي. ځکه دنورو سترو نړیوالو ژبو غوندې معیاري پښتو لیکلار هم باید په جوړښتي (ګرامري) یووالي او لغوي رنګارنګوالی ولاړ وي،دا هم باید ووایم چې د دغه انتقاد آره چېرې ده ((که ملحد یم د ښنه یم)) په ادبي زېږونو کې پر دغه ژبنۍ خوا سربېره فکري او بدیعي پېچلتیا هم کېدای شي، د انتقاد لپاره پلمه شي، هم بې سرو بوله ده په دې چې هنر زېږونه له ګزارش سره همدا توپیر لري.

## ۷- پوښتنه: د نوي ازاد شعر په باب ځینې پسې شا او ځینې مخامخ ستا هلې ځلې انتقادوي، ستا په نظر د دوی دغه کار زموږ ادب ته زیان نه رسوي؟

ځواب: لکه څنګه چې مې ستا د مخنۍ پوښتنې په غبرګون کې پر دغه باب رڼا واچوله، له عیني پلوه هېڅ رښتینی پرمختللی غورځنګ بې ګتې نه وي او جوته ده، چې هر راز ناباندې یې بې ځایه او بې ګټې وي. دلته له دې پرته چې دغه متل رایاد کړم، بل ورځ ځواب ورته نه ګورم: ((کاروان به تېرېږي او سپي به غپېږي)) هیله ده چې زما دغه غبرګون ته پخپله ((افراط)) ونه بولې.

## ۸ پوښتنه: ستا په نظر د یوه لیکوال هغه هم ستا غوندې د یوه ستر لیکوال لپاره په سیاست کې سیده ګډون ښه برېښي او که ډول؟

ځواب: که یو لیکوال او بیا ادیب غواړي، پرګنو ته لار پیدا کړي او ټولنیز ګرانښت او منښت یې په برخه شي، باید د خپلې ټولنې په پر مختللې مبارزه کې کارنده ونډه ولري او لا هڅه یې تل داوي، چې په مخکښانو کې ځای ونیسي. (( ادب د ادب لپاره )) نن سبا هډو هېڅ ارزښت نه لري او (( له سیاست سره کار نه لرو یا مو سیاست نه خوښېږي )) پخپله یوه سیاسي خبره ده. داسې کسان هم له سیاسي ګروهې ځان پاکولای نه شي، هرومرو یوه سیاسي لار او تګلار لري او په کړن کې لیدل شوي دي چې تل د پرمختللي سیاست او مبارزې په مخالف سنګر کې ټیکاو لري او د دې لپاره د خپل ارتجاعي سیاسي دریځ د پټولو هڅه یې کړې وي، سیاست او ادب سره نه پخلا کېدونکې بولي او له دې انګروزې سره سوچ کوي، نور به وغولوي، له دې ناخبره چې خپل ځان غولوي. هره ادبي زېږنده که شعر دی یا داستان، ننداریک دی که فلملیک، هرومرو یو سیاسي، یا په بله وینا یو ټولنیز ارمان او پیغام لري، خو که دغه ارمان او پیغام یو خوا له هنري ارمان سره اخښلی را اخښلی وي او بل خوا د ټولنې له پرمختګ او پرمختیایي بهیر سره سمون ولري، داسې چې د اندو جاج (فکرو مفهوم) له پلوه پوره ژور او د ژبنۍ او هنري جولې له پلوه له یوه ښکلاییز خوند او راکښون څخه ډک وي او له دې سره سره یې د انساني ټولنې او ژوند په انځورنه او ځلونه کې پوره رښتینولي نغښتې وي، هغه زېږندې به په رښتیا سره منښت او ګرانښت ولري او له دې سره به یې زېږندوی هم له دغه ویاړ څخه برخمن وي.

د نړۍ نوميالي شاعران او ليکوال تل پرمختللي او جنګيالي وي.
دلته د سيده او نا سيده پوښتنه سمه نه ده که ستا موخه ګوندي غړيتوب وي، نو ((شنې په غلا نه چيچل کېږي))، د يوه تش ((اپولوتيست)) ليکوال يا په بله وينا د يوه ارتجاعي دريځ ليد توګې او نړۍ ليد لرونکي ليکوال پرمخ د پرمختګ ورشو ډېره لنډه تنګه ده او کوم ارت او په زړه پورې ځنډونه او لرليدونه په مخ کې نه لري او د چا خبره ((د جولا غوندې يې منډه تر مړوي پورې وي)) او بس.

## ۹- پوښتنه: ځينې کسان وايي چې ((د استاد زيار د پښتو پالنې روحيه د ده له سياسي تګلارې سره ټکر خوري)) ستا په اند دا خبره سمه ده؟

ځواب: دا چې زما پښتو پالنه د ټولنې د کوم ناپښتون مليت يا ډلې ټپلې په تاوان نه ده، بلکې د افغان ولس د ټولنيز او فرهنګي پرمختګ په ګټه ده او له بلې خوا زما له سياسي تګلارې او اند پوهې سره پوره اړخ لګوي، نو ولې تر دا منځ ټکر پېښ شي او که کوم ټکر دلته ليدل کېږي، آره (منشا) يې له ما سره نه، بلکې له هماغو لنډ اندو پښتنو او نا پښتنو يا ګوندويانو او ناګوندويانو سره ده چې پښتنو ته د مشر ورور يا اکثريت په سترګه نه ګوري، کاشکې دوی له ما سره، نه يوازې د مارکسيستي- لينينيستي آرونو (اصولو) له مخې، بلکې لږ تر لږه د ټولمنليو نړيوالو آرونو پر بنسټ استدلال

کولای، هسې بې آرو بې دلیله ادعاوې ماته کوم ارزښت درلودای نه شي.

**۱۰- پوښتنه: لکه څنګه چې څرګنده ده، ته د نورو تولو مخینه والو او ازمېښتکارو لیکوالو په اند ول له ځوانو شاعرانو او لیکوالو سره زیات نږدېوالی او لوریینه لرې او له همدې کبله در نه ډېر ګڼ شمېر تاو راتاو هم دي، علت څه دی؟**

ځواب: ما د (د نوي- زوړ) د مبارزې سختې شېبې لیدلي او تر اوسه یې لا ګورم، له دې کبله زه نه غواړم زوړ خوښی پاتې شم او د ((زړو)) د خوشالونې په بیه ((ځوانان)) له ځانه بېزاره کړم. ما له هغو ((زړو)) څخه ستر لوست اخیستی چې تل یې پر خپلو ((زړو)) تینګار کړی او د نوي پېښت د نوښتونو پرضد درېدلي، یا په بله وینا د نوي او ځوان استعداد په غوړېدا کې خپله نیستي ویني. داسې زاړه خپل ځانونه په خپله منفوروي او کوم درناوی چې ځوانان یې ورته باید وکړي، په لوی لاس له لاسه ورکوي. زه د همدغه رمز په پوهېدو سره دې پایلې ته رسېدلی یم چې نه یوازې ځوانانو ته په کمه سترګه ونه ګورم، بلکې د استعداد د غوړېدا او هڅونې مرسته یې وکړم. همدا سبب دی چې تر ((زړو)) مې له ځوانانو سره ناسته پاسته زیاته ده، لیکنې ورسموم او سمه لارښوونه یې کوم، نو ښکاره ده چې تر بل هر چا پر ما ډېر تاو راتاو وي او هماغومره پرې ګران یم، لکه څومره چې دوی پر ما ګران دي. زه که هرڅومره زوړ شم، فکرو

خیال، هیله او ارمان به مې زړښت ته پرې نږدې او په دې ډول به تر مرګه له ځوان پښت سره واټن ونه لرم. د نوي ازاد شعر لپاره زما هاند و هڅه د همدې لوښې ښکارندوی دي. زه د دې څه پروا نه ساتم چې زوړ خوښي زاړه دې را نه خوښ وي یا ناخوښ، ځکه بې له هغې دوی د ګور پر څنډه ولاړ دي او له دې سره سره یې بې ګټې اندونه او ازمېښتونه هم یو ځای ورسره له منځه تلونکي دي.

حال دا چې ځوانان یوه ویره راتلونکې په مخ کې لري او زما د پښت د نورو لیکوالو او فرهنګیالانو ورمندون (قضاوت) او ارزونه (ارزیابي) د همدوی په لاس کې دي.

## ۱۱- پوښتنه: لکه څنګه چې ښکاره ده، اقتصادي حالت د ژوند په ټولو برخو کې خپلې اغېزې ښندي، ستا اقتصادي اکر په اوس وخت کې څه ډول دی؟

ځواب: زما اقتصادي اکر سمدلاسه په دې بد نه دی چې کار ډېر کوم او له دې سره مې ورځنۍ اړتیاوې هم خړوبېږي. د زېرمې خیال دومره نه ساتم، تش همدومره یو بچت هومره په پام کې نیسم چې زما او زما د کورنۍ غړیو کومې نابېرې پېښې ته ځواب وویلای شي. زه په دې برخه کې د المانیانو نه، بلکې د فرانسیانو لیاره خوښوم، لکه چې وایي: ((المانیان د دې لپاره ژوند کوي چې کار وکړي او فرانسیان د دې لپاره کار کوي چې ژوند وکړي)).

## ۱۲- پوښتنه: لکه څنګه چې برېښي، ستا روغتیایي حالت ډېر ښه دی او لا تراوسه ځوان ښکارې او د

همدغې روغتيا په برکت دې په ۳۵-۳۶ کلن ليکوالي ژوند کې دا دومره کار کړی دی، نو که همداسې روغ پاتې شې او يو اوږد ژوند ولرې، کله دې دا هيله هم په زړه کې غځونې کوي چې په ليکوالۍ کې پر ملي کچه سربېره نړيوال ريکارډ هم ټينګ کړای شې؟

ځواب: لکه چې وايي: ((نړۍ په اميد خوړل کېږي))، نو زه هم د خپلو ټاکلو ژوند آرونو (پرنسيپونو) د چوکاټ دننه له يوه اميد سره ژوند کوم او هغه اميد هم دا دی چې په خپل ژوند کې ستر فرهنګي برۍ او برياوې ترلاسه کړم. لومړی مې په ملي او بيا په نړيواله کچه، يا مې لږ تر لږه د خپل ملي او بيا جهاني فرهنګ په تاريخ کې نوم په غټو تورو وکښل شي. زه په همدغه هيله او ارمان د يوه روغتيايي اوږده ژوند پلوی يم او له همدې لامله په پرتليزه توګه تر ډېرو همزولو ځوان پاتې يم. زه د بې خرته دماغي کار ترڅنګه جسمي کار او ورزش، پلې ګرځېدل او هوساييز پروګرام او بيا سم او ارام خوب او ورنده خوراکي رژيم هم له ياده نه باسم د سويس شپږ کلنې تحصيلي استوګنې زما د مادي او مانيز ژوند کچې په لوړونه کې خورا ستر نقش لوبولی دی او همدغه شپږ کاله مې په خپل ژوند کې شمېرلي دي چې هغه هم د څرخي زندان يو کلن بند راته بېرته له صفر سره ضرب کړل، خو بيا هم د ناخوالو او بېلابېلو رواني فشارونو او

اند ېښنو زغم مې د رواني تلقين له لارې تل لوړ ساتلی او د ((خوړو)) پر پرتله ((ترخه)) ژر ژر هېروم. زما زيات شعرونه له همدغه تلقين څخه رنګ اخلي، که نه هسې خو مې ژوند سر ترپايه رنځ او کړاو، درد او ځړيکې دي او د چا خبره هسې ځان غولوم او زړه خوشالوم.

((چې په ناز لوی شي په زيار زړېږي))
زه په زيار لوی شوم، په ناز زړېږم!

**۱۳- پوښتنه: لکه څنګه چې وايې، د لوړ استعداد او زکاوت خاوندان، يا په بله وينا نابغه د ښکاره کړو وړو او ناستې پاستې له پلوه زياتره نارمل نه وي، يا په ډاګه ووايم له نبوغ سره يو راز لېونتوب هم ملګری وي، نو ته له دغه پلوه د خپل ځان په باره کې څه نظر لرې، ايا لومړی ستا دا دومره فرهنګي او علمي برياوې د همداسې لوړ استعداد يا ((نبوغ)) ښکارندويي نه کوي او دويم دا چې که دا خبره سمه وي، نو ستا ځينې ناړامۍ او نه سازښتونه يو ډول ((لېونتوب)) نه ګڼل کېږي او باور لرې چې ته هېڅ راز جسمي او رواني يا دماغي ناروغي نه لرې؟**

ځواب: زه څنګه چې د لوړ استعداد ، ذکاوت یا نبوغ دعوا نه لرم، نو د لېونتوب تور راباندې هم لګېدای نه شي. زه ګومان نه کوم، زما د ذکاوت کچ ومېچ یا (I.Q) دې دومره لوړه وي او دومره نومرې یوړلای شم چې زما د فوق العاده ذکاوت یا نبوغ تر بریده ورسي. زه د نږدې دېرش کلنو رسمي او نارسمي زده کړو په اوږدو کې هماغه مهال د لوړې درجې یا لومړۍ درجې په اخیستلو بریالی شوی یم چې زیاته خواري او زیار مې ګاللي دي، که نه کله کله د بې پروایۍ او ناغېړۍ له کبله مې نه یوازې اول نمره ګي بایللې چې لا بېخي په منځنۍ او ټیټه درجه کامیاب شوی یم. زه د کرکټر لوژۍ د آرونو له مخې ((دماغي)) کرکټر ارزول شوی او ډلبندي شوی یم (د پوهاند سید بهاوالدین مجروع د شننې له مخې )، او له همدې کبله چې له هرڅومره ګرانې او پېچلې علمي موضوع او مسالې سره مخامخ شوی یم، دپوهېدنې او شننې له توغه یې پوره وتلی یم، خو بیا هم د پرله پسې هاندو زیار په پایله (نتیجه) کې. زه همدومره پوهېږم چې دومره تېز هوشه نه یم او یو څه وخت ته اړتیا لرم چې یوه علمي یا فلسفي پوښتنه او مساله په هر اړخیزه توګه حل کړم او هرومرو پرې بریالی کېږم. زما پرتلیزه روغتیا زما د خپلې پاملرنې او اوډلي ژوند زېږنده ده. یوه نیمه روغتیایي ستونزه به هرومرو ولرم چې یا خو به مور زېږې وي او یا خو به مې د ژوند په لومړنیو پنځلسو کلونو کې راپېښه شوی وي، ځکه دغه کلونه مې له سختې بېوزلۍ او بدویت سره ملګري وو. زه له څو کلو راهیسې پوه شوی یم چې ښې غوږ او کیڼه سترګه مې کمزوري دي او له دې سره مټې پر دې هم ورسېدم

چې دا دومره عمر او بیا د زده کړو په بهیر کې هرومرو زیانمن شوی یم او ډېر څه مې چې باید لاسته راوړی وای او ژر مې لاسته راوړی وای، له لاسه وتلي دي. حافظه مې هم دومره پیاوړې نه ده او د ټولو په پای کې له ارثي پلوه زما د پزې د څوکې یو څه کږوالی هم تل زما د ناپامۍ او نه ځیرتیا سبب شوی دی.

زما نه ژبورتیا هم ښایي د پاسنیو طبیعي او کسبي روغتیایي نیمګړتیاوو زېږنده وي او له همدې کبله مې د زده کړو په ګڼنیو ازموینو کې تل پوره نومورې نه دي اخیستې او په لیکنیو (تحریري) هغو کې مې بیا پوره پوره وړې دي. اوس هم زه تر وینا په لیکنه کې ځان ډېر پیاوړی ننګیرم. که دا خبره سمه وي چې د هرچا د استعداد او ذکاوت له لوړوالي سره هماغومره د لېونتوب لوړوالی هم وي، نو کېدای شي، دغه غبرګ ویاړ زه هم ولرم. خو رښتیا رښتیا داده چې زه ټول فرهنګي او علمي برې او بریاوې د خپل لوړ استعداد زېږنده نه، بلکې تر هر څه دمخه د خپلو هاندو هڅو او خولې تویونو پیبره بولم، زه دلته د نومیالي مخترع اډیسن د خبرې پخلی کوم چې د اختراعاتو په باب یې د یوې پوښتنې په ځواب کې کړې وه: (( نبوغ په سلو کې ۹۹ په خولې تویونه اړه لري او یوازې یو په الهام )).

# فرهنګيالی روغتيا پال

ډاکټر محمد فريد بزګر د هېواد ځوان او تکړه ليکوال او روغتيا پال دی. لوی څښتن تعالی ورته په دواړو برخو کې ښه قلم او پوهه ورکړې دي.



تر اوسه پورې يې په طبي برخه کې خپل او د نورو ليکوالو تر لسو عنوانونو زيات کتابونه او رسالې چاپ کړي او هم يې په ټولنيزه او ادبي برخه کې د ګڼو ليکوالو آثار خپاره کړي دي. دا مرکه يې د هيلې ۱۳۷۹ل کال په لومړۍ ګڼه کې خپره شوې، چې دلته يې تاسو ته وړاندې کوو او ستاسو پام ورته را اړوو.

دود خو داسې دی، څوک چې چا سره مرکه کوي نو لـومړی تـرې دا پوښـتي تـر هـر څـه وړانـدې درنـو لوستونکو تـه خپـل ځـان ورو پېژنـه ! زه بـه هـم خپلـه لومړی پوښتنه له همدې دودیزې پوښتنې پیل کړم.

نوم مې محمد فرید بزګر د ۱۳۴۲المریز کال د غبرګولي پر ۱۳مه دکونړ ولایت د نرنګ علاقه دارۍ د چهارقلعه نومي کلي په یوه متدینه او علم دوسته کورنۍ کې زېږېدلای یم.

لومړنۍ زده کړه مې د نرنګ په لېسه کې کړې او تر اووم ټولګي وروسته د کابل په حبیبیه لېسه کې شامل او پر ۱۳۵۸ ل کال د دغې لېسې د ساینس له څانګې فارغ شوی یم. پر ۱۳۶۵ کال د عمومي طب په څانګه کې د کابل طب پوهنځي څخه فارغ شوم. څه موده مې د کابل د عدلي طب په ریاست کې کار وکړ او پر ۱۳۶۷ کال پېښور ته له خپلې کورنۍ سره رامهاجر شوم.

د هجرت په چاپېریال کې مې په ګڼو روغتونونو او کتنځیو کې کـار کـړی دی. اوس د ختیځ د بیـا رغـوني اداري (کـور) مشـر یـم، د او.ار.ای. انټرنیشـنل دخپرونـو د څـانګې مسـوول یـم، د افغـان روغتیـايي کـارکوونکو لپـاره د درې میاشـتنۍ طبـي مجلـې (سـلامتی) دلیکوالـو د بـورډ او د لیکوالـو دکمېټـې غـړی یـم، د پاکستان دماشومانو د ډاکټرانو د اتحادیې (PPA) غړیتوب هم لرم.

له هېڅ سياسي پرې سره اړيکي نه لرم، د خداى(ج) د مخلوق خدمت ته هر څه لوړ بولم، په رګ رګ کې مې د ګران هېواد مينه په ټوپونو ده او وياړم چې افغان، پښتون او مسلمان يم.

## له ليکوالۍ سره دې مينه او لېوالتيا څه وخت پيدا شوه او بيا څه وخت دې پر ليکوالۍ پيل وکړ؟

چاپېريال د انسان پر کړنه کې ستر رول لري. له ډېر کوچنيوالي څخه مې په خپل شاوخوا کې کتابونه ليدل، کله چې د لږو لوستو شوم، نو د ښوونځي د کتابونو ترڅنګ مې نور کتابونه لوستل. تر شپږم ټولګي پورې، ما د هغه وخت په پښتو ژبه چاپ شوي اکثر کتابونه لوستي وو، په کور کې مو يو کوچنی کتابتون درلود، چې د نورو کتابونو ترڅنګ په پېښور کې ډېر چاپ شوي کتابونه په کې وو، هغه وخت چې پلار مې په افغان قونسلګرۍ، پېښور کې کار کاوه، راوړي وو. چې له هغې جملې څخه د صاحبزاده محمد ادريس ښکلی ناول ((پېغله)) هم و. دغه کتاب به تر اتم ټولګي پورې ما تر شل ځله هم ډېر لوستی وي، نو له همدغه وخته کېدای شي زما ليکوالۍ سره مينه پيدا شوې وي. بله مسله په کې زما د پلار رول و، چې همېشه يې موږ ټول لوستلو او ليکلو ته هڅولو.

زما لومړۍ ژباړه د المپيک د لوبو په هکله چې له انګليسي مې ژباړلې وه، پر **۱۳۵۷** کال په هېواد ورځپاڼه کې خپره شوه، هغه مهال زه په يوولسم ټولګي کې وم. کله چې له ښوونځي فارغ شوم، نو د کانکور تر ازموينې وروسته د جګو نومرو په ترلاسه کولو د ممتازو محصلينو په ډله کې يې د زده کړې لپاره بهر ته استوونکو

محصلینو کې یې زما نوم هم لیکلی و. په لومړیو کې یې موږ ته ویلي وو، چې تاسې پولینډ یا هند ته د لوړو زده کړو لپاره استوو، خو کله چې موږ تګ ته چمتو شو، پاسپورټ، انګلیسي برې لیک مو تیار کړل، نو بیا موږ خبر شو، چې دا بورسونه یوازې روسیې ته دي او دا هغه وخت و، چې د کمونستانو پر ضد د افغان مېړني ولس پاڅون په غښتلي کېدو و، نو د یو رښتیني افغان لپاره دا ناشونی کار و، چې په دغسې شرایطو کې دې زه روس ته لاړ شم او هلته دې د خپل هېواد پر ضد وروزل شم، نه زما زړه کېده او نه مې کورنۍ دا هیله درلوده. نو له تګ څخه مې ډډه وکړه، د وخت رژیم هم زه جزایي هغه کال پوهنتون ته پرې نښودلم او زما د تبدیلۍ مکتوب یې د راتلونکي کال لپاره راکړ، یانې په دې ډول یې غوښتل چې زما یو کال ضایع شي. دغه مهال د افغانستان پیاوړي لیکوال او شاعر محترم عبدالله بختانی خدمتګار چې زما د پلار خورا نږدې دوست و، د هېواد ورځپاڼې رئیس و، چې په خپل تشکیل کې یې ځو مجلې هم درلودې، زه یې د ننګرهار په مجله کې دفني غړي په صفت مقرر کړم. که څه هم دغلته مې د کار موده کمه وه (۷-۸ میاشتې) ځکه چې پوهنځی په پیل کېدو و، خو همدلته وه چې له لیکوالۍ سره مې مینه نور هم غښتلې شوه، د لیکوالۍ یو نیم فن مې زده کړ او پښتو لیکل مې تر یوې اندازې اصلاح شول، ددغې مجلې لپاره به مې لیکنې او ژباړې کولې تر هغې چې وتړل شوه.

کله چې پېښور ته رامهاجر شوم، نو په همدغو ورځو شپو کې د (دعوت) غوټۍ هم په غوړېدو وه، نو هغې ته به مې راپورونه او

لیکنې وراستولې، چې بیا مې همدلته د IRC د ژورنالیزم یو نیم کلن کورس ولوست، تر هغه وروسته مې غوښتل چې خپله زده کړه او تجربه د طبي لیکنو لپاره ډېره وقف کړم، ځکه چې په دې برخه کې موږ دومره ځوک نه درلودل.

**په رسېدلو ټولنو کې هرڅوک چې د هر مسلک خاوند وي، لیکوالي یې ورسره زده وي او د لیکوالۍ په وسیله خپل مسلک ته ور خدمتونه کوي، خو زموږ په ټولنه کې لیکوال تر ډېره حده یوازې ادیب، شاعر او تاریخ لیکونکي ته ویل کېږي، په نورو مسلکونو کې د ګوتو په شمېر لیکوال لرو، له نېکه مرغه چې تاسو هم لیکوال یې هم رنځپوه او روغتیاپال، څه فکر کوئ که زموږ په ټولنه کې د هر مسلک خاوند د خپل مسلک تر څنګ پر لیکوالۍ هم پوه وي، نو دا به زموږ ژبې او ولس ته څومره ګټې ورسوي؟**

ډېره مننه، د یوې ژبې د ژوندي ساتلو او له هغې نه د ضرورت دیوې ژبې جوړولو کې باید ټول برخمن شي، هغه که په هر مسلک کې زده کړه ولري، باید دعلمي کارونو تر څنګ د پوهنیزې لیکنې لپاره عملي کار هم وکړي. دخپل مسلک په اړه کتابونه او مقالې

ولیکي ویې ژباړي او په اړونده مسلک کې څېړنې وکړي. له بده مرغه ربښتیا هم زموږ په ټولنه کې لیکوالي یوازې د شاعرانو او ادیبانو کار دی، خو دوی ته به دا ناشوني وي چې یو غیر مسلکي کس په بله برخه کې یوازې په دې نوم چې شاعر یا ادیب دی، څه ولیکلای شي، ان ژباړل یې هم ساده کار نه دی، نو زه دې ته شدیده اړتیا احساسوم او زما په نظر د همدې مسلکي خلکو پښتو ته نه پام د دې باعث شوی دی، چې پښتو له نظره پرېوزي او دې ژبې ته سیمه ییزه او نړیواله بې توجهي رامنځته شي. مسلکي لیکنې کېدی شي په لومړیو کې ستونزمنې وي، خو ورو ورو هر څه اصلاح کېږي.
د مسلکي ژباړې یا لیکلو ښه والی دا دی، چې مسلکي اصطلاحات په کې ډېر وي، نو که پښتو ژباړه یې سخته وي، کېدی شي اصطلاح پرته له ژباړې ولیکو، چې دا مسلکي ژباړه یا لیکنه نسبت ادبي لیکنې او ژباړې ته اسانوي، او بله ښېګڼه په مسلکي لیکنه یا ژباړه کې داده چې که د ادبیاتو له نظره کمزورې هم وي، زیات توپیر نه کوي، ځکه چې هدف یې د مقصد رسول دي. نو مسلکي لیکنه ساده او اسانه ده او په مسلک کې تکړه او وارد پښتانه د پښتو په علمي کولو او ژوندي ساتلو کې حیاتي رول لرلای شي.

**پر دې مسایلو ډېر بحث شوی دی، چې که موږ غواړو خپله ژبه بډایه کړو، نو د نورو کارو ترڅنګ باید د ژبې علمي کېدنې ته زیاته پاملرنه وکړو !**

## تاسو د پښتو ژبې د یو علمي او عملي کارکوونکي او خدمتګار په توګه دا مسئله څنګه ارزوئ؟

لکه مخکې چې مې وویل یوه ژبه یوازې د علمي پانګې په درلودلو ژوندۍ پاتې کېږي او له نورو ژوندیو ژبو سره سیاله کېږي، نو پښتنو ته هم پکار دي چې د خپلې ژبې د ژغورلو، ژوندي ساتلو او د نړۍ د کره ژبو په کتار کې د ودرولو لپاره باید د پښتنو د علمي کولو لپار هڅه وکړي. له نېکه مرغه په پښتو کې ټولې هغه ښېګنې چې د یوې علمي ژبې لپاره په کار دي، شته دي او موږ کولای شو، چې د نړۍ ټول علوم پښتو کړو. دا د یو کس یا څو محدودو کسانو کار نه دی، باید ټول په ګډه متې راونغاړو او څه چې مو له لاسه کېږي په دې اړه وکړو. له نېکه مرغه اوس پښتانه د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسېدلي، په مختلفو ساحو کې یې زده کړې کړي دي او ډېرې ژبې یې زده کړې دي، نو له دې موقع څخه په ګټې باید د لویدیزې نړۍ علم پښتنو ته را انتقال شي.

## تاسو تراوسه پورې په پښتو ژبه څومره علمي (طبي او نور کتابونه) چاپ کړي دي؟

دې پوښتنې ته به په څو برخو کې ځواب ورکړم:

د ختیځ د بیا رغونې ادارې (کور) له لارې موږ تراوسه ۲۱ کتابونه خپاره کړي چې تقریباً اکثره یې علمي دي چې په دې ډله کې درې فارسي، یو انګلیسي او پاتې اوولس یې پښتو دي. د پښتو مهم علمي کتابونه چې د کور له لارې خپاره شوي عبارت دي له: د سینې

ناروغي او توبرکلوز، تشخیصي راډیولوژي، د درملو د استعمال عملي لارښود، د کمپیوټر اساسات او وینډوز، د اروا پوهنې ښوونځي، د جزا قانون شرحه، افغانستان: فیډرالیزم، د خوب نړۍ، په لومړنیو ښوونځیو کې د ژبې د زده کړې لارښوونې او ستراتیژي او داسې نور.

د او. ار. ای. د خپرونو د څانګې له لارې مونږ په لسګونو کوچنۍ علمي رسالې په پښتو خپرې کړې چې مهمې یې عبارت دي له: ایډز څه شی دی؟، د نشې زیانونه، د نشې زهر، په ختیځ نورستان کې د اپینو استعمال او نور. همدا راز د دې ادارې له خوا مختلف پامفیلټونه لکه ملاریا، کالدانه، ایډز او نور خپاره شوي دي. د ایډز فلیپ چارټ په څلورو ژبو ډېر ستر کار و چې د روغتیایي کارکوونکو لپاره ما جوړ او د دې ادارې له خوا خپور شو، چې د نړۍ ډېرو هېوادونو یې نمونې وغوښتې او د پاکستان د مختلفو ادارو له خوا استعمالېږي.

ما ډېرې طبي رسالې او رغتیایي چارټونه د AMI په طبي درې میاشتنۍ مجله (سلامتۍ) کې په پښتو خپاره کړي دي، چې هر یو یې د نړۍ د روغتیایي ادارې (WHO) او UNICEF له مهمو خپرونو څخه دي، چې مهم یې دا دي: په کوچنیانو کې د ټوخي او تنفسي ستونزو د تشیخص او درملنې چارټ، سوزېدل، وچکۍ، د نسناستې ناروغۍ د اهتمام چارټ، کولرا، دغوږ انتانات، دغوږ د انتان د تشخیص او درملنې چارټ او داسې نور.

او په دې وروستیو کې مې د ARIC لپاره دوه کتابګوټي په پښتو وژباړل چې کېدی شي تر اوسه چاپ شوي وي، چې یو یې ډېر خوراکي او بل د پزې- غوږ- ستوني او سترګې ناروغۍ په نامه دي، همدا راز د SERVE روغتیایي زده کړو لپاره مې څو طبي رسالې ایډیټ کړي دي.

## لکه څنګه چې موږ ته څرګنده ده تاسو د چاپ په برخه کې د ادبي (شعري) کتابونو په اندول طبي او نورو علمي کتابونو چاپ ته زیات ارزښت ورکوئ، د دې علت څه دی؟

ښاغلی یون صاحب! د مچیو چک رابانديې مه راپاروه، د دې پوښتنې ځواب یو څه مخکې ویل شوی دی، خو دلته به یې لږ څه زیاتونه وکړم. په پښتو کې د علمي اثارو نه موجودیت د دې سبب شوی چې موږ علمي کتابونو ته ترجیح ورکړو. دا د ټولنې اړتیا ده او په دې ډول زموږ ټولنه مخکې تللای شي. که تاسې یو کتابپلورنځي ته ورشئ، په ډېره مشکله په کې پښتو کتاب پیدا کوئ او هغه به هم شعر وي او لنډې کیسې. په پښتو ژبه د شعر کتابونه خورا ډېر دي، شاعران د ټولنې ډېر حساس خلک دي، باید قدر یې وشي، خو زما په اند یوازې شعر د ټولنې درد نه شي دوا کولای. شاعر یو ټولنیز درد د شعر په قالب کې بیانوي، هغه درد چې ټول ځوروي، موږ باید د درد درمل ولټوو چې هغه علم دی، پوهه ده، نه دا چې د هغې د بیان لپاره مختلفې طریقې استعمال کړو، وزن او قافیې ورته ولټوو.

هیله ده زما درانه دوستان له ما څخه په دې ناراضه نه شي، دا یو تریخ حقیقت دی او له ستونزو ته‌بنته ده. په رښتیا هر سړی شعر نه شي ویلای، شعر ځانګړې هوښیارتیا او سپېڅلی احساس غواړي، چې دا ګوهر په هر چا کې نشته، خو که موږ په اوسنیو شرایطو کې دا ګوهر د یو ښه کار لپاره استعمال کړو، بد کار به نه وي. همدغه شاعر د شعر پرځای کولای شي، یوه علمي څېړنه وکړي، د ټولنې د بیا ودانولو لپاره یو څه ولیکي، یو څه وژباړي او که دا یې له لاسه نه کېږي، غلي دې کېني.

هغه پیسې چې د شعر پر یو کتاب لګېږي په هغو کولای شو د یو ښوونځي لپاره یو کتاب چاپ کړو، د روغتیا په هکله یو کتاب چاپ کړو، د ساینس او تکنیک په اړه یو څه چاپ کړو او داسې نور.

## کله کله داسې پېښېږي چې ګڼ مصروفیتونه او ګڼ کارونه د سړي کار او مسلک ته زیان اړوي، د ګڼو اثارو خپرول او نورو خپرنیو بوختیاوو خو ستا آر مسلک (طبابت) ته څه زیان نه دی اړولای؟

یون صاحب، رښتیا هم کله داسې کېږي، چې سړی دومره په کار بوخت وي او یا پرې کارونه دومره ډېر وي چې لاره ورکه کړي. رښتیا هم زما مصروفیتونه خورا ډېر دي، اکثر دوستانو او زما د کورنۍ غړو ته هم دا پوښتنه پیدا کېږي، چې ډاکټري یې پرېښې او لیکوالي یې راخیستې. کله کله مې راته پلار وایي چې تا هسې طب لوستی، ادبیات به دې لوستي وای. خو حقیقت دا دی، چې زما بوختیا زیاتره

په طبي برخه کې وي. په رښتيا هم کله په مياشتو مياشتو ستاتسکوب په لاس کې نه اخلم، خو د طبي خپرونو له لارې په سلګونو نورو هم مسلکانو ته ورښيم چې څرنګه بايد ستاتسکوب استعمال کړي، زما مقصد دادی که زه مستقيماً د ناروغ درملنه نه کوم، په نامستقيم ډول په سلګونو ان په زرګونو ناروغان د نورو روغتيايي کارکوونکو په واسطه معاينه کوم. که زه په کتنځي کې کېنم کېدی شي د ورځې ۲۰-۳۰ ناروغان وګورم او يوازې همدوی ته مې خير ورسېږي، خو زما کتابونه او خپرونې په سلګونو ډاکټران او نور روغتيايي کارکوونکي لولي، نو په دې ډول مې زرګونو وګړو ته نامستقيم خير ورسېږي.

د يو څه ليکل بايد د يو څه پر استناد وشي، ليکل سند دی، نو څه چې زه د خپلو هېوادوالو لپاره ليکم، د يو څه پر اساس يې ليکم، او د همدې مجبوريت له مخې زه ډېرې نوې څېړنې مطالعه کوم، نوي کتابونه لولم، څېړنې کوم، د نړۍ له ډېرو معتبرو طبي منابعو سره په تماس کې يم، په نړيوالو کنفرانسونو او غونډو کې ګډون کوم او تر لاسه شوې پوهه خپلو هم مسلکانو او هېوادوالو ته د ليکلو او ژباړلو په وسيله انتقالوم. دا ټول له مسلک سره ارتباط دی، نو زه له مسلک څخه لرې نه، بلکې مسلک ته خورا نږدې شوی يم. په څنګ کې يو نيم نا مسلکي مصروفيت هم شته خو دومره نه دی چې زما مسلک دې متاثر کړي.

**تاسو يو ليکوال ډاکټر يا ډاکټر ليکوال يې، له دواړو خواو د پښتنو اروا پوهنه ښه درمعلومه ده،**

**څه فکر کوئ، چې په پښتني ټولنه کې د يو ليکوال لپاره د هيله منديو او نهيلۍ څومره اندېول ساتل په کار دي او يو ليکوال بايد په داسې يو ستونزمن چاپېريال کې خپل کار څه ډول پرمخ بوزي؟**

که موږ پښتني ټولنه په نظر کې ونيسو او د روښانفکره ليکوالو کار دلته وڅېړو، ډېر د هيلې وړ نه دی. ددې علت زما په نظر په پښتنو کې د لوستو وګړو کموالی دی. زياتره ديني علوم او ديني ليکوالان او عالمانو ته په ښه سترګه ګوري. که رښتيا را باندې وايې د ټولنې اړتيا نه احساسوي. فکر کوي چې کتاب لوستل د پيسو د لاس ته راوړلو لپاره دي او يا ځينې منفي انګېرنې چې ګوندې سړی له دين څخه لرې کوي او داسې نور. خو له نېکه مرغه اوس په ځوان کول کې له لوست او ښوونځي سره ډېره مينه پيدا شوې چې دا ليکوال ته هيله پيدا کوي، چې اميد دی راتلونکی نسل به د دوی قدر وکړي.

بله ستره ستونزه چې زموږ په ټولنه کې ده، دوی هرڅه د پيسو په تله تلي، په دې مانا چې که څوک شتمن و، هغه هر څه دی، خو که ډېر ستر ليکوال وي، خو جيب يې خالي و په پښتني ټولنه کې يې ځای نه وي. څوک ورسره مرسته نه کوي، د قدر په سترګه ورته نه ګوري او تر ټولو مهمه دا چې کتابونه يې نه رانيسي.

بله ستونزه د تنظيمونو په وخت کې او يا د کمونستانو په وخت کې د خپلو ځانګړو اهدافو لپاره د کتابونو وړيا وېشل و، چې

پښتانه د مفتو کتابونو روږدي شوي دي، نو اوس پښتانه اکثرو کتابونو او لیکوالانو ته د شک په سترګه ګوري، فکر کوي چې لیکوال د دوی لپاره کومه نوې ستونزه زیږوي او ګرم هم نه دي.

ددې راز ستونزو د حل لپاره بنسټیز کار په کار دی، منطقي څېړل غواړي، چې په ډېر احتیاط او ورو ورو دا ستونزه حل شي، خلکو ته قناعت ورکړ شي، چې د ټولنې په پرمختګ کې د لیکوالو په رول پوه شي، ملي پانګوال باید له لیکوالو سره مرسته وکړي، ملي سوداګر وروزل شي، د ښوونې او روزنې سویه لوړه کړای شي، د لوستو شمېرنه لوړه کړای شي، هغه منفي انګېرنې چې په ټولنه کې دي له هغو سره مقاومت وشي او خلک د پوهې په اهمیت پوه شي.

## اوس اوس خو پښتو ژبې ته په هر ډګر کې خورا زیات کار کېږئ، تاسو دې کار ته څو مره هیلې لرئ؟

که موږ په کیفیت پسې ونه ګرځو او یوازې کمیت په نظر کې ونیسو، خو ښه کار دی، خو زه ډارېږم، چې پښتانه ډېر احساساتي قوم دی، ډېر لنډ اندي دي، د کار همغه شېبې او سملاسي ګټې په نظر کې نیسي، هر اړخیزې اغېزې او عواقب یې نه سنجوي چې دا د پښتنو د ټولو اوسنیو او پخوانیو تاریخي ستونزو اساس دی. دوی په هر کار کې خورا له افراط نه کار اخلي، د کمونستانو په وخت کې یې په برېتونو خولې پټې کړې وې او د هجرت په چاپېریال کې خو عرب د پښتنو مسلمانۍ ته ګوته په خولې پاتې وو. زه وایم چې داسې نه شي، چې زموږ له دې روشنفکر قشر څخه هر څه پاتې وي او یوازې د کتاب پر چاپولو بوخت وي. موږ باید وڅېړو چې

لوستونکي لري او که نه؟ د کتابونو لست کول يا کتارول نه دي په کار، د ټولنې او وګړو اړتيا، دځوان قشر غوښتنه بايد په نظر کې ونيول شي.
بله مسله د کتاب کره والی دی، نه دا چې رنګين پوښ ورکړه، تکرار تکرار مطالب راغونډ کړه او په الماری کې يې کتار کړه.
د افغانستان دننه د تعليمي نظام ګډوډېدل، د هجرت په چاپېريال کې د پښتنو ښوونځيو نشتوالی، هغه ستونزې دي چې ژور فکر غواړي. ايا دومره کتابونه چې چاپېږي، دوه درې کاله وروسته به لوستونکي ولري؟ لومړی بايد په ځوان کول او کوچنيانو کې د مطالعې شوق پيدا شي، دهغوی له خپلې ژبې سره مينه پيدا شي، هغوی په خپله ژبه زده کړه وکړي. دوی له خپلې ژبې ښځې پردي دي او لا پردي کېږي. افغان ځوانان په پرديو ښوونځيو (سکولونو) کې دي، ان د پښتو يوه کرښه لوستی يا ليکلای نه شي، نو دومره کتابونه چې چاپېږي لږ ترلږه خو ۵۰٪ لوستونکي ولري.
کتاب هر څوک اخلي. موږ بايد په پښتنو کې د وړيا کتاب لاس ته راوړلو ناولی کلچر پای ته ورسوو، زما مقصد دا نه دی، چې تجارتي اړخ ته يې بايد ډېر پام وشي، مقصد مې دادی چې ټولنه او وګړي ورته اړتيا ولري او د اړتيا له مخې لوستونکي پيدا کړي او خلک يې واخلي.

## کله کله په ځينو ادبي کړيو کې دا خبرې راپورته کېږي، چې پېښور مېشو، هېواد مېشتو او

لو د يد يځمېشتو افغانانو ترمنځ د فرهنګي او علمي کار لپاره ملګرتوب ډېر ښه اړيکي ټينګ شوي دي، دا بايد وپالل شي او د ملي ارمان لپاره تري کار واخيستل شي، که څوک د ځاني ګټو او يا نورو تمايلاتو لپاره دا امکانات وکاروي، نو دا اوسنی بهير به ټکنی کړي او ستونزې به رامنځته شي، ستاسو په نظر بايد په دې برخه کې څه وشي چې دا کارونه نور هم ښه شي؟

رښتيا هم په دې وروستيو وختو کې پېښور مېشتو، هېواد مېشتو او لويد يځمېشتو افغانانو ترمنځ د خپل فرهنګ د ودې لپاره خورا مثبت بدلون رامنځ ته شوی او ددغې لړۍ له برکته خورا مهم اثار چاپ شوي او د پښتو ډېرو لېوالانو ته د لوست مواد برابر شوي دي. دا ډېر د قدر او درناوي کار دی، ټول افغانان يې بايد مننه او درناوی وکړي. په لويد يځ کې په ډېره مشکله پيسې لاس ته راځي او اکثره وګړي دومره بوخت وي، چې خپلې کورنۍ ته هم په مشکل رسېږي، نو په دغسې ټولنه کې که دا سې زمري راپيدا کېږي، چې خپل هېواد او فرهنګ ته يې پام وي، دا ډېره ستره خبره ده. نو زما په نظر ددغو درنو هېوادوالو پاک او سپېڅلي احساسات بايد ټکني نه شي، بلکې نور هم قوي او غښتلي شي، له هغوی سره بايد مرسته وشي، چې هغه مالي امکانات چې د هغوی په وسيله برابرېږي، په

ښو لارو کې ولګول شي. که خدای ناخواسته څوک له دغو سپېڅلو احساساتو څخه بده ګټه اخلي او هغه لکه د تنظیمي غنیمتونو په شان د خپلو چارو لپاره استعمالوي، دا زه خورا ستر او نه ښښونکی خیانت ګڼم. ځکه چې بیا به د دې چوپړ پر رښتینو خدمتګارانو هم څوک باور نه کوي. زما په اند ښه به دا وي، چې دغه مالي مرستې باید د یو شخص په وسیله نه، بلکې د یوې جرګې له لارې ولګول شي، د لګولو لارې یې دقیقې وي او مرسته کوونکو ته باید بېرته رښتینی راپور ورکړ شي.

که یو وارې دغه بې اعتباري رامنځته شوه، نه جبیره کېدونکې پایلې به ولري، نو هیله ده چې دواړه خواوې هغوی چې مرسته کوي او هغوی چې له مرستې ګټه اخلي، باید صادق او موخه یې افغانستان او افغانانو ته خدمت وي، باید هېڅ ډول شخصي اغراض په هغې کې ذیدخل نه کړي.

## تاسې په راتلونکي کې د طبي څېړنو او چاپ په برخه کې څه پلان لرئ؟

څرنګه چې موږ کومه خاصه مالي منبع نه لرو، چې کلنۍ بودجه مو معلومه وي، نو له همدې کبله کوم ځانګړی پلان هم نه لرو، د (کور) له خوا دماشومانو د طبابت عملي لارښود کتاب تر ژباړې لاندې دی چې IAM له خوا تمویلېږي، د او. ار. ای. له خوا د جنسي مقاربت له لارې خورېدونکې ناروغۍ او ایډز یو کتاب هم په نظر کې دی چې زه باید پرې کار وکړم. هیله لرم چې ټول طبي کتابونه د یوې مرجعې له لارې خپاره شي چې په دې ډول د ممکنه غلطیو مخه ونیول شي،

او طبي کره اصطلاحات استعمال شي، که کومه تکنيکي نيمګړتيا په کې وي هغه لرې شي.

## په علمي، فرهنګي او په نورو هېوادنيو چارو کې ستړيا او ستونزې ګالل د انسان د روحي ارامتيا په برخه کې څومره اغېزمن دي؟

د هېواد مينه، ملي احساس او مسوووليت، روانه غميزه، د افغانانو معصوميت او بېوزلي، د هجرت ناخوالې او په لسګونو نور عوامل انسان دې ته هڅوي چې څه يې له لاسه کېږي خپل هېواد او هېوادوالو ته وکړي. زه د هر کار په ترسره کولو د لوی څښتن شکر او مننه پرځای کوم چې د يو څه کولو توان يې راکړی. ښکاره ده چې د هر کار ښه پايله سړي ته روحي ارامتيا ور په برخه کوي، خو له بده مرغه په افغانستان کې ګډوډ حالات او بې ثباتي او د هجرت په چاپېريال کې د هېڅ ډول حقوقو نشتوالی ځينې وخت د روحي ارامتيا پرځای روحي ستونزې سړي ته راولاړوي. ته به يو کار په خورا زحمت او زيار سر ته ورسوې او له نورو به دا دې توقع کوې، چې ستا د کار درناوی به وکړي او يا به په کې يو څه برخه واخلي خو ځينې وخت داسې پېښېږي چې يو کار سړي ته ستونزه شي. د بېلګې په ډول د محترم ډاکټر صاحب ناصر شينواري کتاب چې هغوی پرې ډېر تکليف ايستلی و او تر خورا زحمت او زيار وروسته مونږ چاپ کړ، له هغې څخه مو ۴۷۰ ټوکه د ننګرهار د طب پوهنځي ته تقريباً يو نيم کال مخکې واستول، خو يو ټوک يې هم د طب زده کوونکيو ته

تراوسه نه دی ورکړ شوی، چې زما احساس يې خورا ژوبل کړ او فکر کوم چې پوهاند صاحب به هم روحاً ډېر ځورېدلای وي، همدا راز ځينې وختونه سړی ډول ډول خبرې اوري چې روحاً نا ارامه کېږي، خو په هر صورت، زه د خپل هېواد او هېوادوالو لپاره يو څه کوم روحاً ارام او ځان سوکاله احساسوم.

## ښه به وي چې تاسو د خپلو کارونو د ښه اوډن او سمبالښت لپاره د پښتنو ليکوالو، ډاکټرانو يوه جرګه جوړه کړئ چې کارونه مو له انفرادي حالت نه ډله ييز حالته واوړي؟

رښتيا هم له يوه سر څخه دوه او له دوو درې ښه دي. زه چې هر کار کوم له مسلکي خلکو سره پرې خبرې کوم، خو رښتيا هم داسې جرګه ګۍ لا تراوسه موږ نه لرو، چې په ګډه تصميم ونيسو، زه د داسې همفکرو او سپېڅلو هم مسلکانو په لټه کې يم چې هدف يې يوازې او يوازې انسانيت، افغانيت او اسلام ته خدمت وي، هر څوک چې دغه احساس ولري، زموږ د زړه دروازې ورته پرانيستې دي.

## د خپل درد ېدلي ولس او هېواد لپاره څه هيلې لرې؟

د خپل درد ېدلي ولس او هېواد لپاره زما هيله لکه د نورو ځورېدلو کړېدلو، مهاجرو افغانانو په څېره ده، يو هوسا، يوموټی، پرمختللای او سوکاله افغانستان چې ټول افغانان په کې پرته له کومې ستونزې، تبعيض او جګړې ژوند وکړای شي، بشپړه فردي خپلواکي په کې وي، ګاونډيان مو په حسرت راته وګوري او له

لويديزې نړۍ خلک د کار او علم د ترلاسه کولو لپاره زموږ هېواد ته راشي. ټولو پښتنو ته په خپله ژبه هرڅه موجود وي، خپل کورګۍ مو جوړ وي او چاته محتاج نه يو. نورې نړۍ سره انساني او له اسلامي هېوادونو سره د وروري له مخې مرسته وکړو. غښتلى او قوي حکومت ولرو، چې په هرځاى کې د افغان پوښتنه وکړي. نړيوال د افغان نوم په قدر او عزت ياد کړي، او ګاونډيان مو ويار وکړي چې زموږ په ګاونډ کې دي، نړيوال مارکېټونه له افغاني موادو ډک وي.

**د بېلابېلو مسلکونو خاوندان په ليکنۍ پښتو کې يو څه ستونزې لري، ليکنۍ ژبه کره او سمه نه کاروي، خو ځينې ليکوال بيا په قصدي ډول د کره، نږه او معياري پښتو له کارولو ډډه کوي، خو تاسو په ژبنۍ او ليکنۍ برخه کې ښه کره او معياري ژبه کاروئ، ښه به نه وي چې د بېلابېلو مسلکونو خاوندان او بېلابېل ليکوال په ژبنۍ او ليکنۍ برخه کې د ژبپوهانو لاره تعقيب کړي، چې د ګډوډۍ مخه ونيول شي؟**

هر څه چې کره او سټنډرډ وي، ډېر وګړي ترې مستفيد کېدلاى شي، دناکره ژبې استعمال لوستونکو ته ستونزې راولاړوي، يو ځاى به يو څه يو ډول ليکل شوي وي او بل ځاى به بل ډول. نو دا په ځانګړي ډول هغوى ته چې له ژبې سره دومره بلد نه وي، مشکل پيدا کوي، نو ددې

ستونزې د له منځه وړلو لپاره باید هڅه وشي، چې یو او کره لیکدود مروج او ټول د قلم خاوندان یې مراعت کړي. هغوی چې کره لیکدود له ناخبرۍ څخه نه کاروي، ورو ورو اصلاح کېږي، خو هغوی چې ښه پوهېږي، سم کار پرېږدي او ناسمه لیکنه کوي بیا خو جرم دی او له خپلې ژبې سره خیانت. د دغسو لیکنو باید تر خپله وسه مخه ونیول شي او له لیکوالو سره یې خبرې وشي چې ولې دا کار کوي. د موضوع علت باید څرګند او په حل کې یې کوښښ وشي، ژبه د یو سړي نه ده، ژبه په ولس پورې اړه لري، نو د ولس په سترګو کې خاورې شیندل او ناکره ژبه استعمالول نه ښېونکی عمل دی.

پاتې شوه د نړه پښتو خبره، دا هم سپېڅلی کار دی، خو دومره ضرور نه دی چې پرته له هغې دې لیکل ناشوني وي او یا باید حتماً نړه ژبه وکارول شي. زما په اند په اوسنیو شرایطو کې چې پښتانه ټلویزیون نه لري، راډیو نه لري، اخبار نه لري، چې نړه ژبه عامه کړای شي، نو ځینې وخت نړه ژبه د ګټې پرځای تاوان کوي، ځکه لوستونکی له ډېرو نا اشنا لغتونو سره مخامخېږي، نو که په یوه جمله کې دغه نوي او نا اشنا لغتونه ډېر شي، لوستونکی ترې بیا مفهوم نه شي اخیستلای. ځینې درانه لیکوالان چې د نړه ژبې پلوي کوي، هڅې یې د ستایلو وړ دي. خو کله کله داسې هم کېږي، چې د دغو درنو لیکوالانو یوازې د کتاب په پښتۍ نوم کافي دی، چې څوک کتاب ته د ګوتو وروړلو جرئت ونه کړي. زه د نړه ژبې سر سخت پلوي یم، خو نه په اوسنیو شرایطو کې، هر څه باید د وخت د غوښتنو او شرایطو په نظر کې نیولو سره پرمخ یوړل شي. لکه څرنګه چې مې مخکې وویل، موږ کومې داسې تلویزیوني او

یا راډیویي خپروني نه لرو چې د هغې په وسیله په یو وخت یو نوی جوړ شوی لغت یا یوه نوې اصطلاح ټولو پښتنو ته پر یو وخت ورسېږي ، نو دا نړه پښتو به د یوې لهجې په څېر منزوي پاتې شي، په ورو ورو هر څه کېدونکي دي، په دایرة المعارفونو ، ډیکشنریو کې دې اوس ځای پرځای شي، بیا به ورو ورو میدان ته راوځي او خلک به ورسره بلد بږي، زه خو د محترم ګوهر رحمن ګوهر د کتاب یو مخ هم نه شم لوستلای، په داسې حال کې چې هغه کتاب د دې لپاره لیکلای، چې ولوستل شي او داسې نور.

## د پښتو ژبې د پرمختګ او هغې ته د کار کولو د څرنګوالي په باب څه نظر لرئ؟

زما په نظر باید اساسات غښتلي شي، د پښتنو کوچنیانو لپاره باید په خپله ژبه ورکتونونه، ښوونځي او پښتون چاپېریال وي، د ځوانانو لپاره باید پښتون چاپېریال، پښتو ښوونځي او پوهنځي او د اړتیا وړ پښتو راز راز خپروني او کتابونه موجود وي. د ملي پانګوالو پام باید دې ټکي ته راواړول شي، له یو څه مرستې څخه چې د پښتو ژبې د پرمختګ لپاره یې مینه وال ورکوي باید ښه، سمه او په صداقت ګټه پورته شي.

لویان ځوانانو ته او ځوانان لویانو ته غوږ کېږدي، احساسات او شخصي اغراض یو خوا پرېښودل شي او په صداقت سره خدمت ته ملا وتړل شي. صداقت، رښتینولي او د زړه له کومې مینه هغه اساسي توکي دي، چې د هر څه لپاره لار پرانیزي.

## لکه څنګه چې موږ خبر یو تاسو د یوې پښتو طبي ډیکشنرۍ د جوړولو کار پیل کړی و، دا کار کوم حد ته رسېدلای دی؟

رښتیا هم ما له ډېر پخوا د پښتو طبي ډیکشنرۍ کار پیل کړی دی او زما د ژوند ستر هدف همدغه دی، خو دا ډېر مشکل کار دی، ارام چاپېریال او صادق ملګري غواړي، ما تر ډېرې اندازې مواد برابر کړي دي، خو نور کارونه راباندې دومره ډېر شوي، چې دا کار تقریباً اوس په ټپه ولاړ دی. منتظر یم چې د پښتو سټنډرډ کمپیوټري پروګرام رامنځته شي، ځکه چې بیا به په اسانۍ په کمپیوټر کې ترې هم ګټه اخیستل کېږي. تر اوسه ما تقریباً د ۳۰ په شاوخوا کې د مختلفو ژبو طبي او غیر طبي ډکشنرۍ او قاموسونه، له ۱۵ زیات په CD کې طبي ډیکشنرۍ او قاموسونه او د پښتو ډېر چاپ شوي طبي مواد راپیدا کړي دي، چې له دې ټولو څخه په ګټې او د لوی رب په مرسته زه هیله لرم چې وکولای شم، د ژوند دا ستر هدف پوره کړم.

# (( ژوندۍ اکاډمۍ )) هم مهاجره شوه

سرمحقق زلمی هېوادمل د افغانستان یو ستر لیکوال او څېړونکی دی، چې د خپل د پرشکلن فرهنګي ژوند په بهیر کې یې په خپلو هڅو د ډېرې ستاینې او یادونې وړ کارونه تر سره کړي دي.



سر څېړونکي زلمي هېوادمل تر اوسه پورې یوازې په کابل کې خپل او د نورو لیکوالو (۲۵۰) عنوانه اثار چاپ کړي دي.

په پېښور کې یې د خپل اته کلن ژوند په بهیر کې هم خپل او د نورو افغان لیکوالو تر (۱۰۰) عنوانو زیات پوهنیز څېړنیز، ادبي او تاریخي اثار چاپ کړي دي. که د هېوادمل صاحب ورځینی ژوند محاسبه کړو، نو دوه پر درې برخې یې پر څېړنیز کار تېرې شوې دي. د هېواد دا

نوميالى ليکوال په دې وروستيو وختونو کې يو ځل بيا له مهاجرت نه مهاجرت ته اړ شو ، د يوه اوږده سفر لمن يې ونيوله. د سفر تر پيل دمخه موږ له وخت نه ګټه واخيسته او يوه مرکه مو ورسره وکړه چې دلته يې درنو لوستونکو ته وړاندې کوو ، دا مرکه د هيلې مجلې د ۱۳۷۸ل کال په څلورمه ګڼه کې خپره شوې ده.

**لکه څنګه چې موږ ته ثرګندده ده تاسې په دې ورځو کې د يوه اوږده سفر لمن نيولې. څه ډول احساس کوئ چې دا سفر به له عاطفي پلوه درته څومره ګران پرېوزي؟**

ګران يون صاحب ! ستا دلومړنۍ پوښتنې په غبرګون کې که زه څه ووايم، نو ضرور به کليشه يي، تصنعي او متحد المالې خبرې وي، چې هر غرب ته روان افغان يې وايي، خو چې کله يې د هغو ځايو خواږه تر خوله شي. نو نه بيا هغه خبرې وي او نه يې له هېواد او خلکو سره هغه تعهدونه، نو ځکه زه د دې پوښتنې ځواب مسکوت پرېږدم.

**له کابله پېښور ته مهاجرت او له پېښوره بيا جرمني ته مهاجرت ترمنځ درته تفاوت ښکاري؟**

له کابله پېښور ته راتګ هم راته لومړی ګران و، خو چې کله راغلم، ما لپاره هېڅ شی هم بېګانه نه و، لکه د یوې ځمکې له یوې برخې چې سړی بلې هغې ته لاړ شي. یا په بله وینا د پښتنو له یوې فرهنګي حوزې څخه بلې ته ورتګ سړي ته ګران نه پرېوزي.

په دې کې شک نه شته چې د پېښور د استوګنې په لومړیو کلونو کې مو کابل او د هېواد نورو برخو ته د تګ ډېره تلوسه وه، خو د ټوپکیانو له وېرې نه شو تللای، په وروستیو کلونو کې دا مشکل هم حل شو. د افغانستان بېلابېلو برخو ته د تګ راتګ مشکل هم رفع شو. پر دې اساس نو په پېښور کې د استوګنې په دوران کې ما له وطنه د بېلتون احساس نه دی کړی، خو جرمني ته تګ او هلته اوسېدنه له اصل نه د سړي د جلا کولو مانا لري.

زه پر ۱۹۹۱م/۱۳۷۰هـ ل کال د افغانستان د حکومت په لګښت په رسمي ډول جرمني ته تللی وم، په رښتیا چې جرمني زموږ د زیارصاحب په وینا دومره پاک و، لکه چې یې څټلی وي. دوه اوونۍ مې پکې تېرې کړې، د پاتې کېدو بلنې هم له حده زیاتې وې او د پاتې کېدو لپاره هېڅ خنډ هم نه و، خو که رښتیا درته ووایم، چې زه یې جذب نه شوم کړای او تر دوو هفتو بېرته افغانستان ته لاړم. دا چې اوس څه پېښ دي چې له خپله اصله ځان بېلوم او په ډېر ګرانو لارو هماغه هېواد ته ځم؟ په دې ته او ستاسو د مجلې اکثره لوستونکي پوهېږي.

**ځو مره چې موږ ته معلومه ده، ستاسې شخصیت، اند، ژوند د افغاني مینې او د افغاني ټولنې له**

**ځانګړنو څخه جوړ دی. له لوېديزې ټولنې سره به څومره توافق وکړای شئ؟**

زما په پوهه هر افغان چې سن يې له پنځه ويشتو او يا څلوېښتو لوړ وي، که هغه غرب ته ځي په هغو ټولنو کې يې د جذب شرايط ډېر لږ دي. ښايي له ځينو استثناوو پرته د دغو سنونو لرونکي افغانان د غربي ټولنو ټول کړه وړه خپل نه کړای شي. زما سن اوس د جذب له شرايطو وتی دی او د توافق په اړه بايد درته ووايم چې څو کاله دمخه زه له خپلې کورنۍ سره هندوستان ته لاړم. په ډهلي پوهنتون کې مې د لوړو تحصيلاتو لپاره داخله هم واخيسته، له ما سره يې د ال انډيا راډيو ډهلي په پښتو څانګه کې د مقررۍ وعده هم کړې وه او ماشومانو ته مې د ملګرو ملتونو د مهاجرو د ادارې له خوا د مهاجرت د منل کېدو شرايط هم اماده شوي وو، مګر توافق مې ونه کړای شو په دوو مياشتو کې بېرته کابل ته راغلو هر څه مو پرېښودل. دا چې ما په هندي شرقي ټولنه کې توافق ونه کړای شو، نو له غربي ټولنې سره توافق راته ګران ايسي، خو کله کله د ژوند اړتياوې سړی د زهرو ګوټ ته هم اړ کاندي.

**په کابل کې ستاسو فرهنګي هڅو او څېړنيزو خدمتونو يو تثبيت شوی مقام درلود او ټولنې ته يې ګټه خورا څرګنده وه، نو ځکه زموږ ځينو ليکوالو تاسې ته د انصاف له مخې د ((ژوندۍ اکاډمۍ))**

**لقب درکړی و ، په پېښور کې هم ستاسې هڅو د يوې ژوندۍ اکاډمۍ حيثيت درلود ، څه فکر کوئ په جرمني کې به هم ستاسې فرهنګي خدمتونه په همدې ډول وي؟**

ګران يون صاحب ! شرايط به هر څه روښانه کړي. دا به مخکې له وخته وي که زه ووايم چې جرمني ته ورسېږم، نو زه به دا کوم. ښايي د کار ښه شرايط راته برابر شي، چې له کابل او پېښوره هلته ډېر او ښه کار وکړم او دا هم له امکانه ليرې نه ده، چې شرايط مې د يوې کوټې په کونج کې کښېنوي او د هېڅ کار او فعاليت مجال رانه کړي، له کابله راسره ځينې پروژې وې، چې څه مې په پېښور کې دلوی خدای(ج) په فضل بشپړې کړې او دوه يې پاتې دي.

په دې دوو پروژو کې يو د پښتو نظم داستان دی (البته نظم د پېښوريو ورونو په اصطلاح نه، بلکې د شرقي فرهنګ له معمولي اصطلاح سره سم) او بل د فرهنګ ادبيات پښتو څلورم ټوک. ددې دواړو کتابونو لپاره ما څه مواد ټول کړي دي. هيله ده چې د اروپا په کتابتونو کې د مطالعې له زمينو سره سم دا دواړه کتابونه هم بشپړ کړای شم.

د فرهنګ ادبيات پښتو د څلورم ټوک اصلي موضوع د پښتو پوهو ختيځپوهانو پېژندنه او د دوی د کارونو معرفي ده او په پای کې يې د دريو چاپ شويو ټوکونو بشپړوونکې برخې راځي.

پر دې سربېره مې د مرکزي اسیا له ولسونو سره د پښتنو د فرهنګي روابطو د څېړلو پر موضوع هم څه اسناد راټول کړي دي، که لوی خدای(ج) توفیق راکړ ښایي دا پروژه هم بشپړه کړم.

## په ټولیز (عمومي) ډول تاسې له هېواده د مسلکي کادرونو د وتلو بهیر څنګه ارزوئ؟

زما په پوهه پر مسلکي کادرونو سربېره له هېواده د عادي او سپېدونکیو له وتلو سره زموږ ټولنه خپل کفایتونه له لاسه ورکوي. په ټولنه کې د فقر، بدبختی، بېکاری او بېروزګاری خپرېدو ته زمینه مساعد ېږي. دا چې مسلکي کادرونه له هېواده وځي، ورسره د هېواد ټول اقتصادي، اجتماعي، فرهنګي او نور بنسټونه یا له رکود سره مخ کېږي او که بشپړ رکود نه وي. له موثریته لوېږي. له هېواده د خلکو وتل نن زموږ د هېواد لپاره یوه ستره غمیزه ده. د دې وتلیو خلکو ډېر لږ تعداد ښایي بېرته راشي. هغه هم د کورنیو مشران. هغه ځوانان چې په غرب کې ستر شوي دي. روزنه یې غربي ده. د هغوی راتګ ستونزمن څه چې ناممکن بریښي.

پر دې سربېره د هېواد دننه او له هېواده باندې د افغانستان لپاره د کادرونو روزل د پخوا په څېر نه دي، د هېواد دننه پوهنتونونو څخه چې هم ځوانان فارغېږي، د سند په ترلاسه کولو سره یا نورو هېوادو ته ځي او که هلته لاړ نه شي د هېواد دننه په دولتي ادارو کې کار نه کوي، بلکې زیار باسي چې په پېښور او کوټه کې په افغاني او بین المللي غیر دولتي موسسو کې ځانته کارونه ولټوي او که نه نو د هېواد دننه انجیوګانو (غیر دولتي موسسو) کې په کار پسې ګرځي.

زما په پوهه غیر دولتي موسسو هم له کادرونو نه د افغانستان دولتي ښوونکي، انجینران او نور فرهنګي کسان چې په دغو بین المللي او افغاني غیر دولتي موسسو کې په ډېرو ښو معاشونو کار کوي، تر هغه وخته به بېرته افغاني دولتي موسسو ته راونه ګرځي، تر هغې چې دا موسسې فعالې وي.

ښه مې په یاد دي؛ د ۱۹۹۳م کال په اکتوبر کې یو تنظیمي مشر د کابل پوهنتون یو استاد ته وویل: ((دوکتور صاحب که د افغانستان په خارجه وزارت کې کار کوې، نو د یوې سیاسي څانګې مدیریت به در کړو. تا په امریکا کې تحصیل کړی دی. انګرېزي دې ښه زده ده، تا ته خارجه وزارت ډېر ضرورت لري.))

استاد له تنظیمي مشر نه لومړی پوښتنه وکړه چې معاش یې څومره دی؟

تنظیمي مشر بیا ورته وویل: ((د افغانستان معاشونه دي. څه چې ټول اخلي ته به یې هم اخلې؟؛ استاد بیا ورته وویل: ((صاحب! ما ته په فلانۍ غیر دولتي موسسه کې د میاشتې پېنځلس زره کالداري راکوي، چې د افغانستان د خارجه وزارت د سیاسي مدیریت د یو کال معاش دومره نه کېږي، نو زه څنګه کولای شم دا معاش پرېږدم او په جنګونو کې کابل ته لاړ شم.))

د تنظیمي مشر او د پوهنتون د استاد له دې خبرو دې نتیجې ته ورسېدم، چې د غیر دولتي موسسو په ډېرو معاشونو اموخته شوي افغانان خپلو پخوانیو کارونو او یا د هېواد نورو موسسو ته بېرته نه ګرځي.

**ځینې کسان په دې نظر دي چې که ځینې لیکوال بهر ته هم لاړ شي، د فرهنګي خدمت وړتیا له لاسه نه ورکوي، غوره بېلګې یې په جرمني کې زرین انځور او په ډنمارک کې عبدالمالک بېکسیار او ځینې نور په نورو هېوادونو کې دي چې په کم وخت کې یې ډېر فرهنګي خدمتونه وکړل، ستاسې په نظر دا مسئله څنګه ده؟**

فرهنګي کار چې د هر چا له خوا په هرځای کې وشي، په زیاته په اوسنیو شرایطو کې هغه د ډېرې یادونې او زیاتې منننې وړ دی. ځکه زموږ فرهنګ تر هر بل وخته اوس زیات کار ته اړتیا لري. هغه افغانان چې په اروپا کې ناست دي، خپله هم کار کوي او نور افغانان هم هڅوي چې په فرهنګي کار کې برخه واخلي، افغانان باید د دغو کسانو ډېر ډېر درناوی وکړي. ښاغلیو انځور، بېکسیار، جمال رحمن، خلیل الرحمن رسولي، اجمل روهي، خوشال روهي، امام الدین ساپي، په لندن کې ایمل پسرلي، په هالینډ کې ښاغلیو حمیدي، ټکور، په هند کې پوهندوی عبدالخالق رشید او په مسکو کې استاد نومیالي، ارمان، دوکتور لطیف بهاند، عارف خزان او نورو ښاغلیو چې کوم کارونه کړي دي او یا یې کوي دا ټول زموږ د فرهنګ په وده کې اغېزمن دي. د دې کارونو پایښت به زموږ د فرهنګ په بډاینه کې خپل ځانګړی مقام ولري.

**زموږ ځینې لیکوال او تحصیل کړي اشخاص چې په تېرو اوو اتو کلونو کې په هېواد کې پاتې شول، هم له ذهني او فزیکي پلوه استهلاک شول، خو یو شمېر چې نورو هېوادونو ته لاړل هلته حل شول، ستاسې په اند په دغو دوو لارو او حالاتو کې باید کومه لاره انتخاب شي؟**

هغه ښاغلي چې په نورو هېوادونو کې حل شوي، بیا یې غږ نه دی اورېدل شوی او هغه ښاغلي چې په هېواد کې پاتې دي او ټول استعدادونه او فزیکي قوه یې د یوې مړې ډوډۍ د پیداکولو لپاره استهلاکېږي. دواړه حالته یې زموږ لپاره زیانمن دي. دا اوسني ناوړه شرایط چې زموږ پر خلکو تحمیل شوي. د دې سبب شول چې د فرهنګ د موسسې ډېر کار کوونکي د هېواد دننه او تر هېواد د باندې خپله اصلي پېشه پرېږدي او کورنۍ ته د ډوډۍ د پیداکولو لپاره پر نورو کارونو اخته شي.

په دې دوران کې زموږ ډېرو فرهنګیالیو خپل صلاحیتونه له لاسه ورکړل. د فرهنګ د موسسې د بېلابېلو څانګو هغه کارکوونکي چې لا تراوسه د هېواد دننه پاتې دي. زما په پوهه د ډېرې ستاینې او شاباسۍ وړ دي. دوی که اوس د خپلو کورنیو د خېټې مړولو لپاره نورو کارونو ته لاس اچوي، د نور کار ترڅنګه له خپلو موسسو سره هم تړاو لري، اړیکې یې تر نه دي پرې شوي. که یو ځل د لوی

خدای(ج) په فضل دنیا رڼا شوه او د هېواد دننه د فرهنګي موسسو بیا رغونه پیل شوه او په بنسټیز ډول دا موسسې بېرته فعالې شوې، نو د هېواد دننه فرهنګیان به ځانونه بېرته ډېر ژر عیار کړای شي. اما هغه فرهنګیان چې له هېواده بهر له خپلې پېښې لرې په نورو چارو بوخت دي، له خپلو اصلي کارونو سره د دوی بېرته پیوستون یو څه ستونزمن کار دی.

## لکه څنګه چې مو ته معلومه ده، د اولادونو عاطفي فشار او ان د ځینو دوستانو ټینګار تاسې دې ته مجبور کړي یاست چې جرمني ته سفر وکړئ، د بېرته راتګ په باب دې په ذهن کې کوم پلان جوړ کړی دی؟

اروانښاد استاد روهي به تل له جرمني نه ماته او خپلو نورو دوستانو ته په لیکنو کې لیکل چې کله په هېواد کې انساني کرامت ته د درناوي فضا پیدا شي، نو بیا دې ته نه ګورو چې په کابل کې څوک پر تخت ناست دی، سملاسي را روانېږو او شپه هم هلته نه کوو. خو مونږ ولیدل چې د هغوی د ژوند تر پایه داسې فضا په هېواد کې مساعده نه شوه او استاد په لرېتوب کې د هېواد په ارمان هلته په جرمني کې ساه ورکړه.

زه هم دا درته وایم چې لوی خدای(ج) دې زما له تګ سره سم په هېواد کې د سولې، امنیت او د ټولو افغانانو لپاره د ژوند فضا

راپیدا کړي. میاشت به هم تېره نه کړو او بېرته به له کورنۍ سره راشو.

اما که شرایط همداسې دوام وکړي او موږ د بچیانو د روزنې او نورو اړتیاوو پر بنا هلته پاتې شو، نو په هغه صورت کې د بېرته راتګ مساله د سفر له اسنادو سره اړه پیداکوي، اوس دا نه ده معلومه چې موږ ته د المان حکومت کله په افغاني پاسپورټ ویزه راکوي؟ البته که دغسې اسناد ترلاسه کړم، او په اقتصادي لحاظ د سفر وړتیا ولرم، نو ضرور به په خیر بېرته راځم.

## په پېښور او ان کابل کې دې ګڼ شمېر لیکوال او د کتاب مینوال په وړیا کتابونو روږدي کړي وو او ((جاریه صدقه)) دې ورکوله، هلته خو به دومره کتابونه نه وي، لاسونه به دې خارښت ونه کړي؟

ګران یون صاحب! ډېره ښه پوښتنه دې کړې ده. په کابل او په پېښور کې چې ما د کتابونو د وړیا وېش لپاره کومه هڅه کوله، هدف مې دا و، چې زموږ زیاتره لیکوال او شاعران د کتابونو د اخیستو وس نه لري. که زه وکولای شم، دوی ته وړیا کتابونه برابر کړم، نو به مې دوی ته څه خدمت کړی وي. په دې لړ کې به له لیکوالو پرته ځینو نورو کتاب لوستونکیو ته هم وړیا کتابونه رسېدل.

زه خپله هم دا فکر کوم، چې په جرمني کې به څنګه کوم، ته دعا کوه، چې هلته هم داسې شرایط برابر شي، چې زه خلکو ته وړیا کتابونه ورکړای شم.

**په ملي مسايلو کې خو دې په کابل او پېښور کې له ډېر زيات احتياط نه کار اخيست، په جرمني او ټوله اروپا کې خو دا مسايل اوج ته رسېدلي دي، هلته به هم ستاسې پاليسي پر همدې بنسټ ولاړه وي؟**

ګرانه ! په ملي مسايلو کې له احتياطه کار اخيستل زما په خټه کې اخښل شوي دي. دا کار زه له ډاره او يا له مضره احتياطه نه کوم، بلکې زما دا عقيده ده چې په دې مسله کې افراطي عمل د هېواد او خلکو په ګټه کار نه دی. دا کار که هر څوک له هرې خوا کوي، زما په عقيده سم کار نه دی.

زه به په خير په جرمني کې هم دا پاليسي تعقيبوم، نور چې څوک څه کوي خپله خوښه يې ده.

**په پېښور کې دې د نورو ګڼو کارونو ترڅنګ څو درانه څېړنيز کارونه ترسره کړل چې په دې کې (د پښتو نثر اته سوه کاله) او (په هند کې د پښتو ادبياتو د ودې او ايجاد پړاوونه) مغتنم کتابونه هم شامل وو، د پښتو نظم د تاريخ ليکنې پروژه به دې څنګه شي؟**

ما دمخه د يوې پوښتنې په ځواب کې هم درته ليکلي دي، چې زما په لومړنيو کارونو کې د پښتو نظم تاريخ ليکل شامل دي. زه له لويه خدايه توفيق غواړم، چې دا کار وکړای شم.

## په جرمني او ځينې نورو اروپايي هېوادونو کې د پښتو د ځينو خطي نسخو څرک شته او له خطي نسخو سره خو ستاسې مينه هر چا ته څرګنده ده، د دې نسخو لټون لپاره دې هم کومه خيالي نقشه جوړه کړې ده او که نه؟

د اروپا په ډېرو هېوادونو کې لکه: روسيه، المان، فرانسه او جرمني کې پښتو نسخې معلومې دي، چې ځينې يې فهرست شوې هم دي. له امکانه لرې نه ده، چې د ځينو نورو هېوادونو د ختيځپوهنو په څانګو کې هم پښتو نسخې وي. که ماته شرايط مساعد شول، زما لومړنۍ وظيفه به دا وي چې زه دغه نسخې وګورم. فهرست يې کړم. په دې باب زما پروګرام شته.

## د پېښور په اته کلن مهاجر ژوند کې دې خوږې او ترخې خاطرې کومې دي؟

د پېښور اته کلن ژوند کې خوږې او ترخې خاطرې ټولو ليکل ځانته رساله کېږي، خو له ډېرو خاطرو به دوه درته وليکم:

الف– د ۱۹۹۲م کال د جون ۲۴مه نېټه وه، چې وفا کې زما د مقررۍ پر څلورمه ورځ زه د ناصر باغ کمپ ته تللم. په بورډ کې مې وليدل

چې پولیسو افغان ترکاري پلورونکیو ته ډېر بد او سپک ښکنځل کول، په څاپېړو یې وهل او ترکاري یې ورته نهر ته ارتولې. دې وضعې دومره بد تاثیر راباندې وکړ، چې هغه شپه مې ډوډۍ ونه خوړه.

ب – بله ترخه خاطره مې دا ده چې زه تېر ژمی له جلال اباده پېښور ته راتلم، له اوسنۍ پولې چې واوښتم، سرحدي موظفینو، واړه افغان ماشومان درولي وو او تېرېدو ته یې نه پرېښودل. له دغو افغان ماشومانو سره یو ګلن تېل، له چا سره من اوړه، نیم من بوره او څه وو، یو ماشوم لږ څان وښوراوه، یو ملېشه دومره وواهه چې له خولې یې وینې روانې شوې، هغه ورځ باران هم شوی و، ماشوم یې دومره په خټو کې ورغړاوه، چې کالي یې ټول په خټو ککړ شول. خو ماشوم په دې حال کې هم د تېلو ګلنه په غېږ کې کلکه نیولې وه.

**خپل تېر ادبي او علمي ژوند څنګه ارزوئ، له خپل کړي کار څخه راضي یاست؟**

ګران یون صاحب! زه نه پوهېږم چې زه په څه ډول رواني رنځ اخته یم، خپل کړي کارونه مې هېڅ نه خوښېږي.

**په بهر کې مېشتو افغان لیکوالو او نورو د واک او امکاناتو له خاوندانو څخه څه هیله لرې چې په افغانستان کې د اوسنۍ فرهنګي خصوصاً خپرنیزې خلا د ډکولو لپاره څه وکړي؟**

ټول هغه افغانان چې په غرب کې اوسېږي، که هغه فرهنګي کار کوونکي دي او که نه دي د افغاني فرهنګ د بيا تاند ساتلو لپاره بايد په يو ډول نه يو ډول د فرهنګ له موسسې سره مرسته وکړي. په افغاني مجلو کې بايد اشتراک وکړي، چاپ شوي کتابونه راونيسي، له فرهنګي موسسو سره مرسته وکړي.

**لکه څنګه چې څرګنده ده پښتني فرهنګ ته کار زياته قرباني غواړي، ستاسې قرباني او زيار ټولو ته څرګند دی، خو ټول عمر بې امتيازه قرباني هم دوام نه شي موندلای او انسان اخر د ژوند چارو ته هم اړتيا لري، ستا په نظر داسې يوه لاره شته چې نه سيخ وسوزي او نه کباب، يانې هم ژبې ته خدمت وشي او هم د ليکوال ژوند يو څه خړوب شي؟**

زما خپله تجربه دا ده چې له فرهنګي کار سره مينه سړی له نورو کارونو پاته کوي. د دې مينې مهارول او بلې خواته توجه ښايي ډېر زور وغواړي، چې زما په وس نه ده پوره. زه تل په کورني ژوند کې بريالی نه يم. زما د کور زياتره مکلفيتونه، اروابښاد استاد روهي، زما محترمې خوابښې او ګرانو خوشال روهي او اجمل روهي سرته رسولي او ما خپل عمر په مطبعو کې تېر کړی دی.

**په ټوليز ډول د پښتو اوسنی ادبي بهير (شعر، کره کتنه او څېړنه) څنګه ارزوئ؟**

په اوسني دوران کې خو زموږ په فرهنګي کړیو کې کره کتنه ګرد سره نه شته او که وي په معیارونو، ادابو او شرایطو برابره نه ده. د څېړنې کار خو اوس په ټپه ولاړ دی، یوه نیمه څېړنه چې کېږي هغه هم په معیار نه ده برابره.

## د خپل هېواد او فرهنګ راتلونکي ته څه هیلې لرئ؟

هېواد لپاره د نورو ټولو افغانانو په څېر زما دا هیله ده، چې لوی خدای پکې سوله او امنیت راولي، چې ترېنه ټول تللي بچي یې بېرته تودې غېږې ته ستانه شي.

زموږ فرهنګ ډېر کار ته اړتیا لري، لوی خدای دې لکه تا غوندې څو نور ځوانان هم ورپیدا کاندي چې د تاند ساتلو لپاره یې په لېونۍ مینه کار وکړي.

## دا چې د سفر په ګڼو مصروفیتونو کې دې زموږ ګڼو پوښتنو ته ځوابونه راکړل، ډېره مننه درڅخه کوو، کور دې ودان او بچیان دې سوکاله.

تاسې نه هم ډېره مننه، په فرهنګي چارو کې درته زیات بریالیتوب غواړم.

# په کاڼو کې غمی

يوه يوه نيمه لسيزه وړاندې پښتو يوه داسې ژبه وه چې له نويو برېښناييزو پرمختياوو او کمپيوټري خوړلنيو څخه بې برخې وه، خو ځينو ځوانو افغان کمپيوټرپوهانو او په تېره بيا ځوان او تکړه کمپيوټر پوه ښاغلي نورالرحمن لېوال د خپلو زرګونو ساعتونو ذهني



او فزيکي کار په پايله کې پښتو له کمپيوټر سره داسې غاړه غړۍ کړه چې ان تصور يې هم نه شو کېدی. اوس د دوی د کمپيوټري پروګرامونو له مخې پښتو ژبې ته اکثره هغه اسانتياوې شته چې د نړۍ ډېرې وتلې او بډايه ژبې يې لري. د همدغو اسانتياوو له کبله اوس په

پښتو ژبه ګڼ شمېر مجلې، کتابونه او نورې خپرونې چاپېږي. پښتو ژبې او افغان ولس ته دا اسانتیاوې او برې په وړیا ډول ترلاسه شوي نه دي، بلکې د څو تنو د زیات زیار او کړاو پایله ده. ښاغلی نورالرحمن لېوال له دغو هڅندویانو، مخکښانو او سرغندویانو څخه دی.

ښاغلی لېوال یو سمونپال، ټولنیز، سمونچار، سوله پال، فرهنګپال او پرمخیال شخص دی، د خپلې ټولنې په هر دردوغم دردمن او خوږن دی، کله چې له لېوال صیب سره څوک پر ټولنیزو مسایلو ګړېږي، نو فکر کوي چې لېوال صیب یو کمپیوټر پوه نه، بلکې یو ټولنپوه دی. د ټولنې لپاره د دوی هر علمي کار ډېر ګټور دی. د ټولنې په هر ډګر کې که د لېوال صیب په شان نور لېوالان پیدا شي، نو بې له کوم شکه به د ټولنې هره برخه ډېرې بریاوې ترلاسه کړي.

څرنګه چې لېوال په ډېر کم عمر کې د ټولنې د خدمت لپاره ډېرو سترو کارونو ته اوږه ورکړې، نو د زیاتې ستاینې او یادونې وړ دی. د هیلې مجلې په دې (۱۳۷۹ل کال دویمه) ګڼه کې مو ښاغلی لېوال ګړولای او دلته یې مرکه په ګډه لولو:

## لېوال صيب هيله ده تر هر څه لومړی د رنو لوستونکو ته خپل ځان وروپېژنئ؟

زه د افغانستان د لوگر ولايت اوسېدونکی يم او تېر ۱۷ کاله مې په پېښور کې د نورو هېوادوالو په څېر په هجرت کې تېر کړي، ډېرې سړې تودې مې ليدلي، د هجرت په لومړيو کلونو کې مې څو کاله د مجاهدينو په څو دفترونو کې کله يو او کله بل کې وړې دندې درلودې، وروسته مې بيا د ملگرو ملتو د روغتيا له نړيوالې ادارې سره او په پای کې د خپل کاروبار تر پيله وړاندې د ملگرو ملتو له پرمختيايي ادارې سره کار کاوه. په دغه لړ کې مې د افغان معيوبينو ټولنې او يو څه نورو افغاني غيردولتي ادارو سره همکاري کړې ده، د خپل کار په اوږدو کې مې ډېرو غونډو، سيمينارونو او ننداړتونو کې برخه اخيستې. استراليا، کاناډا، انگلستان، مراکش، سينگاپور، دوبی، تايلنډ او ايران ته مې لنډ سفرونه هم ورسره کړي، ډېرې ښې او بدې خاطرې ورڅخه لرم، له ښو څخه يې د نورو هېوادونو پرمختگ او ښکلا ده او له بدو څخه يې زموږ له هېوادوالو سره د ډېرو هېوادونو زورزياتی دی.

## څنگه دې وکولای شول د کمپيوټر پېچلې او پرمختللې نړۍ ته لار پيدا کړې؟

زما نوښتگر کسان او د هغوی نوښتونه تل خوښ وي او د هغو څېړنه او معلومات راته تل په زړه پورې وي، دغه مې يوه مشغولا هم

ده. ما لومړی ټایپستي زده کړې وه، د دې لپاره چې ماموریت پیدا کړم، د دفتر لپاره ماته د ټایپستي زده کول غوره په نظر راغلل، هغه و چې ما په ایران کې د ټایپستي یو کورس په داسې وخت کې ووایه چې د ورځې به مې مزدوري کوله او ماښام به کورس ته تلم، ستر کړاو په کې دا و چې د ایران حکومت افغانان په تعلیمي، صحي، خوراکي او دولتي ادارو کې له کار او ګډون څخه بې‌برخې منع کړي وو، او که څوک به په دغو ادارو کې ګیر شول د اسلام کلا له لارې به بې روسانو ته ورسپارل.

هغه وخت به خلکو ویل او ما به په ځینو خپرونو کې لوستل چې نن سبا کمپیوټر د ټایپ لپاره کارېږي چې ډېر دقیق او ډېر ګړندی دی، هغه و چې زه په دې لټه کې شوم چې کمپیوټر زده کړم، بیا مې په اسلام اباد کې دعربانو ورونو په مرسته یو درې میاشتنی کورس ولوست او دا له نورو څخه د کمپیوټر په برخه کې زما لومړنی او وروستی زده کړه ده. یون‌صیب! کمپیوټر سره له دې چې ماشین دی یو ښوونکی هم دی، له کمپیوټر او د هغه له هر پروګرام سره ډېر بشپړ کتابونه او مرستندویه اسانتیاوې وي چې د کمپیوټر او د هغه پروګرام په زده کړه کې بشپړه مرسته کوي او که هر څوک له دغو کتابونو او مرستندویه پروګرامونو څخه کار واخلي، نو استاد ته ډېره کمه اړتیا پېښېږي. ما چې هر څهٔ کړي هغه مې له کتابونو او کمپیوټر څخه په خپله زده کړي، هر څوک چې کمپیوټر زده کوي، زما لارښوونه ورته دا ده چې لومړی دې ځان ته کمپیوټر واخلي او

بیا هر پروګرام چې زده کوي د هغه له کتابونو او د کمپیوټر له مرستې څخه دې کار واخلي.

## یوازې مینې دې کار ته راکاږلی یې او که استعداد دې هم په همدې برخه کې درسره ملګرتیا کړې ده؟

زما په اند هر کار له یوې غوښتنې څخه پیلېږي چې مینه، رښتینولي او اخلاص ورسره مل شي، نو بریالیتوب یې مقدر شي، او که الله تعالی چاته غوره استعداد هم ورکړی وي نو بیا خو یې بریالیتوبونه په انتظار وي، زه له خدای پاک څخه ډېر شکر ادا کوم چې پر ما یې ډېره لورونه کړې ده، خو زما په اند که هر کار په مینه، رښتینولي او بیا بیا هڅه ترسره شي، نو د ډېرو دنیاوي کارونو ترسره کول هېڅ ګران نه دي. دا زما تګلار ده چې زه د خپلې ټولنې د ربړو په کمولو کې خپله ونډه واخلم، له کمپیوټر او عصري تکنالوژۍ سره زما مینه نه شته، خو زما مینه دخپلو هېوادوالو له خوشحالۍ، سوکالۍ او د هېواد له ابادۍ سره ده، نو لکه څنګه چې کمپیوټر د وخت او زمونږ د ټولنې مهمه اړتیا او غوښتنه وه، نو دغې غوښتنې زه دې ته وهڅولم چې کمپیوټر پښتو کړم، او خدای پاک(ج) دې مونږ ته وس راکړي چې خپلې ټولې ستونزې اوارې کړو.

کله چې له نن نه یوه لسیزه مخکې به مې د کمپیوټر خپلو هممسلکو سره دا خبره شریکوله چې کمپیوټر ته باید پښتو پروګرامونه جوړ کړو. هغوی به ویل: په امریکا کې په زرګونو خلک پر یوه پروګرام کار کوي، په ملیونونو ډالر لګوي، او تاسې یې یوازې کوئ، او په خندا به یې وویل دا ناشونې ده لکه څنګه چې ما

مخکې وویل که هر څوک په خپله غوښتنه کې رښتینی وي او په مینه کار وکړي نو ډېر ناشوني کارونه ترسره کولای شي.

## تر اوسه پورې دې څومره او کوم کوم پروګرامونه پښتو کړي دي؟

ما له ۱۹۸۹ کال نه راپه دېخوا د کمپیوټر د پښتو کولو هلې ځلې پیل کړې. پر ۱۹۹۳ کال مو په لومړي ځل په نړۍ کې د هغه وخت تر ټولو غوره پروګرام ورډپرفیکټ۱،۵ پښتو ته واړاوه او پښتو لیکل په کې تر انګرېزۍ هم ښه وشول. ځکه چې دغه پروګرام په انګرېزۍ کې په اکثره چاپندیو (پرنټرو ) په بېلابېلو اندازو چاپ نه شو کولای، خو پښتو په هر چاپندي تر یو زر پاینټه پورې اپ وکړ، یانې د پښتو یو خط په یو زر اندازو کې چاپ شو او دغې یوې اندازې په اته ډوله بڼه بدلوله چې هر خط اته زره خطه شو. په دې ډول ۱۸ خطونه ۱۸۰۰۰ ډولونه راکړل. بیا مو د خدای تعالی په مرسته له ځلورو کلونو خواریو وروسته وینډوز ۹۵ پښتو ته واړوله. د یادونې وړ ده چې وینډوز ۹۵ د ټولې نړۍ په سلو کې ۹۰ کمپیوټروالا کاروي او بیا مو پرله پسې وینډوز ۹۸ پښتو کړه او د خدای تعالی ډېر ډېر شکر دی چې سږ کال مو له انګرېزي وینډوز سره یو ځای وینډوز ۲ زره هم جوړه کړه، د دې مطلب دادی چې په دغه کار کې موږ له امریکایانو سره یو شان شولو. همدارنګه مو د پښتو ځینو نورو پروګرامونو لکه یونیورس او یونیورسلورډ ته هم پښتو خطونه جوړ کړي دي.

د پښتو پروګرامونو په جوړولو کې موږ له پښتو معیارونو او نړیوالو کمپیوټري معیارونو یا سټنډرډونو نه لکه (( یونیکوډ ))،

چې په کمپیوټر کې د ژبو معیار دی کار اخیستی. همدارنګه موږ د افغان معیاري (پښتو/دري) لیکمن یا کیبورډ معیار، د پښتو تورو د جوړولو معیار او نور ورته کارونه کړي، هیله ده چې نور افغان کمپیوټر پوهان ورڅخه کار واخلي.

دخدای تعالی(ج) شکر دی اوس پښتو په هغو پروګرامونو لیکل کېږي، طرح کېږي او څېړل کېږي چې د نړۍ عصري ژبې لکه انګرېزي ورباندې لیکل کېږي. اوس کمپیوټر ته پښتو او انګرېزي هېڅ توپیر نه لري، هر سړی چې په پښتو پوهېږي، نو ان شاالله چې هغه ته به په کمپیوټر د پښتو لیکلو ربړه نوره نه وي او بلهدا چې پښتو په کمپیوټر کې اوس د سیمې له نورو ژبو نه ډېره مخکې ده نورې ژبې یوازې په کمپیوټر لیکل کېږي او پښتو کې ټول هغه څه کېږي چې خلکو به انګرېزي ته اختصاصول.

د څښتن تعالی په برکت اوس زموږ پروګرامونه په هېواد کې او له هېواد څخه بهر په ټوله نړۍ کې د پښتو، دري او اردو لیکلو لپاره کارېږي، چې په هر برخه کې خلک ترې کار اخیستلای شي، زموږ پښتو وینډوز سیستم له ویندوز سره افیس ۴،۳ افیس **۹۵**، ۹۷ او ۲۰۰۰پروګرامونه لکه ورډ، ایکسل، پاورپواینټ، اکسیس، کورلډرا، اوټلوک ایکسپریس او داسې نور ډېر پروګرامونه پښتو ته اړوي. تر ټولو غوره خبره داده چې له مایکروسافت کمپنۍ سره موږ د عربي وینډوز ۲۰۰۰، افیس ۲۰۰۰ او انټرنټ ایکسپلورر **۵** کې ډېره مرسته کړې وه چې هغوی ډېره ستایلې او د مایکروسافت په ویبپاڼه کې له موږ څخه مننه هم شوې. دغه شان د ایران او پاکستان

کمپیوټر پوهانو هم زموږ کارونه ستايلي. پر ۱۹۹۰ کال د پاکستان ساینس فاونډیشن او د ملګرو ملتو د يوې پروژې له خوا په پېښور کې د کمپیوټر او د هغه د پروګرامونو په ننداړتون کې موږ ته لومړۍ جايزه راکړل شوه.

## تاسو چې په پښتو ژبه د کمپیوټر د پروګرامونو را اړول پیل کړل، تر تاسو دمخه بهیر یا هغه کار چې په دې برخه کې شوی څنګه ارزوئ؟

ما له ۱۹۸۹ ميلادي کال څخه، چې د ځانګړي کمپیوټر (یا پرسونل کمپیوټر) لسیزه ورته وايي را په دېخوا د کمپیوټر د پښتو کولو هلې ځلې پیل کړي او زما یقین دی چې نورو ډېرو پښتنو به ډېرې هلې ځلې کړې وي او ډېرو نورو ته سخته اړتیا ده، خو تر ما دمخه په خپرونو کې چې د کومو هڅو ادوالو یادونه شوې، هغه ډاکټر عبدالقادر ودان دی چې د ټول پښتون مجلې د ۱۹۹۰ کال په دويمه ګڼه کې ورسره مرکه شوې، د پښتو پر کمپیوټري کولو یې پیل کړی و، خو څه پیداوار یې بازار ته نه دي راویستي، ما ورته دوه درې ځله لیک استولی خو ځواب یې نه دی راکړی چې ده څه کړي دي. همدارنګه ګاما کمپنۍ په (اپریټینګ سیسټم) پروګرامونه، برېښنالیک او ویبپاڼو یا (ایمېل او ویبپېج) پروګرامونه، جالیز یا ((نیټورک اینګ)) پروګرامونه پښتو شول.

خو لکه څنګه چې ما مخکې وویل موږ ته ډېر نور کار کول په کار دي، زه هیله کوم چې زما نور پښتانه ورونه به زموږ کارونه یو ځل

بیا له سره نه کوي او پر هغو به دعوه هم نه کوي او نوي پروګرامونه به جوړ کړي. اوس موږ په ای بي ایم کمپیوټر کې په ویندوز ۹۸ او ۲ زره کې پښتو په بشپړ ډول دننه کړې او چې کومې نیمګړتیاوې لري هغه وخت پر وخت سموو زما هیله ده چې زما پښتانه هممسلکي به زموږ له کړي کار څخه کار واخلي او لاندې کارونه به ورباندې وکړي:

پښتو لوستل په کمپیوټر یانې دا چې کمپیوټر پښتو ولولي.

پښتو سکېن کول یا لیکل شوی متن له ټایپ کولو څخه پرته کمپیوټر ته ورل.

پښتو ویبپاڼې جوړول.

د ټولو پښتو پروګرامونو ترمنځ د لیکل شوي متن وړل او راوړل، یانې زموږ د پروګرامونو، ایملس، یونیورس، یونیورسل ورډ، یونې ټایپ، ګلوبل رایټر، انپېج او داسې نورو پروګرامونو ترمنځ د لیکل شوي متن وړل راوړل.

په جاوا کې پښتو لیکل

په یونېکس کې پښتو لیکل او لوستل.

همدارنګه موږ او بي بي سي میکنتاش ته هم یو څه کار کړی او نور کار ته ډېره اړتیا ده.

د خوشحالۍ زېری دادی چې زموږ د پروګرامونو په مرسته زموږ د کمپیوټر ژبې لکه (( ویژول بیسیک، او (( ویژول سي )) کې پښتو پروګرامونه په داسې اسانۍ جوړېدی شي لکه څنګه چې انګرېزي ته جوړېږي.

دا ستاسو یو شعار دی ((هېڅ شی باید وړیا ورنه کړای شي، ځکه چې ارزښت یې کمېږي)) په تجارتي برخه کې خو ستا شعار سم دی، خو فرهنګي کار یو څه قرباني هم غواړي ما نا دا چې د ولس دهڅونې او ويښتيا لپاره بايد يو څه مالي او مانيزه قرباني هم ورکړو، تاسو تر کومه بریده قربانۍ ته حاضر يئ؟

((هېڅ شی باید وړیا ورنه کړای شي)) څخه زما مقصد دا نه دی چې موږ ټول عمر یوازې په ګټې پسې وګرځو، بلکې مقصد مې دادی چې موږ پر خپل ځان متکي شو، نه د نورو په مرستو، که زه خپل پروګرامونه وړیا ورکړم، نو زما په خیال زه به یې یوازې زرو پښتنو ته ورسوم او که زرو پښتنو زما پروګرامونه واخیستل نو زه به یې نورو یو ملیون پښتنو ته د رسولو جوګه شم؟ د رحمان بابا څه خوندور شعر دی:

د دلبرو صدقې لره یې غواړم

هسې نه چې په دنيا پسې زهير يم

امریکا کې د ((املس)) پروګرام چې د پښتو ترڅنګ د ډېرې نورې نړیوالې ژبې په کې وې د ۱۹۹۰ کال په شاوخوا کې راوویست، چې د یوه ساده لیک لیکلو لپاره و، همدارنګه په دغو وختو کې د ((یوني ورسل ورډ)) پروګرام هم بلې امریکایي کمپنۍ راوویست، چې

املــس تــه ورتــه دي. دغــه د ((ډاس)) زمانــه وه، خــو چــې کلــه مایکروسافت وینډوز راغله او کمپیوټرونه تېز شول نو د ډاس په پروګرامونو د کمپیوټر د کارکوونکو مینه نه ماتېده، بیا دوه درې کاله وروسته ګاما کمپنۍ د یونیورس په نوم پروګرام راوویست، چې په وینډوز ۳،۱ کې کار کوي، موږ دغه پروګرام ته هم د پښتو څو نوې لیکبڼې (فنټونه) ور جوړې کړې، همدارنګه په جرمني کې چا ورته یو څو پښتو لیکبڼې جوړې کړې دي، دغو پروګرامونو د پښتو لیکنو اړتیاوې نه شوې پوره کولای، نو موږ په دغه وخت کې ورډ پرفیکټ ۵،۱ پښتو ته واړاوه، چې څه ناڅه له وینډوز نه کم نه دی. او د هغه وخت غوښتنې یې پوره کړې. د یادونې وړ ده چې ځینو وړو کمپیوټرچیانو زمـوږ د پښــتو ورډ پرفیکــټ او پــه جرمنــي کــې جوړو شویو لیکبڼو په باب وخت پر وخت د ځان ښودنې لپاره ځینو خلکو ته ویلي چې دا پروګرام موږ پښتو کړی دی.

د وینډوز پـه راتلو سره ټولو کمپنیو منډه پیل کړه چې داسې پروګرامونه جوړ کړي چې ټوله وینډوز په یوه او بله ژبه کار وکړي، مایکروسافت خپله وینډوز ټولو اروپایي ژبو ته واړوله او بیا یې عربي هم راوویستله او نورې هغه ژبې یې چې د بازار له مخې لږ ګټې وې په وینډوز کې ورګډې نه کړې.

د ډاس لپاره ډېر پروګرامونه جوړ شول چې د ژوند په هر اړخ کې یې مرسته کوله، خو کمپیوټر پر یو وخت یوازې یو پروګرام چلولای شو اوله یوه پروګرام څخه بل ته د کار شویو موادو وړل راوړل ډېر ګران کار و، نو وینډوز پر یوه وخت په ډېرو پروګرامونو کې کار

وکړای شو او د پروګرامونو ترمنځ د شوي کار وړل راوړل اسانه شول.
نو په دغه وخت کې ګاما کمپنۍ ((یوني ټایپ)) پروګرام راوویست، دوی هڅه کوله چې ټولې هغه ژبې چې د مایکروسافت کمپنۍ پروګرامونه یې نه لیکي د دوی یوني ټایپ یې په وینډوز کې ولیکي، چې اصلي متن به په یوني ټایپ کې ټایپېده او د وینډوز په بل پرګرام کې به اچول کېده، که څه هم د دوی هڅې د ځینو اروپایي ژبو لپاره بریالۍ وې، خو په پښتو کې یې ستر کړاو دا و چې یو لین به په یوه ځل لیکل کېده، سمونه، لویېدل او کوچني کېدل به په کې نه کېدل. نو دا هغه وخت دی چې موږ ((د اسیا سافت پښتو سیسټم د وینډوز ۳،۱ او وینډوز ۹۵ لپاره)) راوویست. چې وینډوز ۹۵ او دهغې یو زیات شمېر پروګرامونه یې په بشپړ ډول پښتو کړل.
د کمپیوټر پروګرامونه هم پر ډولونو وېشل شوي، د مثال په ډول ((ورډ)) د لیکلو لپاره یو پروګرام دی او (ایکسل)) د شمېر یا حساب کتاب لپاره دی. زموږ د هلو ځلو په لړ کې بنسټیز یا ((ډیټابیز)) پروګرامونه؛ خپریز یا ((ورډ پروسیسنګ)) پروګرامونه، یا چلیز. یون صیب! په نړۍ کې چې کومو ولسونو وده کړې هغه یې په دې نه ده کړې چې ګڼې یو لېوال او یا کوم بل... صیب په کې پیدا شوی، چا پروګرامونه جوړ کړي، وړیا یې ورکړي او چا ((هیله)) غوندې مجله د زړه په وینو لیکلې او بیا یې دهغې د چاپ لپاره لګښت او د نورو چارو په لټون پسې لالهانده شوی دی. که هر څوک هر چاته هر څومره شیان وړیا ورکړي بیا به هم هغه موږ نه شي.
یو شعر دی:

نه په عمر مړېږه شته نه په مال
نه په مینه څوک مړېږي نه په سوال

پرمختللیو ولسونو ګډه ملګرتیا او راکړه ورکړه کړې، دغه راکړه ورکړه د دوه اړخیز درناوي سبب شوې، یو کار یو کړی یو بل کړی، هغه یې د سوداګریزو اصلو پر بنا سره شریک کړي او سترې سترې کمپنۍ ترې جوړې شوي چې نن سبا نړۍ چلوي. تاسو به هرومرو د ((سترې لوبې)) په باره کې لوستلي وي، نن سبا هغه پنځه سوه کمپنۍ نړۍ چلوي، چې پیداوار یې د نړۍ په هر هېواد کې خرڅېږي، د امریکا مشر کلنټن یوازې خبرې کوي، خو کار د امریکا کمپنۍ کوي، چې د خپلو ځانګړو ګټو لپاره د نړۍ په ګوټ ګوټ کې ډول ډول ستونزې راولاړوي.

نو مطلب دا که چېرې موږ خپله هره لاسته راوړنه چې په ډېره قربانۍ او زیار مو لاسته راوړې وي په وړیا ډول د یوه ځل لپاره ټولنې ته وړاندې کړو، نو که دغه اړتیا موږ ته بیا بیا راپېښه شي بیا به څه کوو؟ زه دا قضاوت لوستونکو ته پرېږدم چې موږ ته څه په کار دي. د ساري په توګه زما تل ستاسې او ځینو نورو لیکوالو سره همدا بحث وي چې یاره دا مجلې او کتابونه وړیا مه ورکوئ ځکه چې که وړیا ورکړای شي، کېدی شي بې قدره خلکو ته هم په لاس ورشي، نو هغوی یې په قدر نه پوهېږي، ځکه چې د زرو په قدر زرګر پوهېږي، خو که زرګر پیدا شي نو خدای پاک خپله ورته زر پیدا کوي.

که موږ سوکال او خوشحال ژوند او ښېرازه هېواد غواړو، نو ټول راز مو پرځان باندې په متکي کېدو کې پټ دی، نه په وړیا وېشلو او وړیا ترلاسه کولو کې!

خپله فکر وکړئ تر څو پورې به یو څو تنه قرباني ورکوي او تاسې ته به د کارونو لپاره پیسې رالېږي، فرض کړه که هغوی پیسې راونه لېږي نو دلته به د خپرونو بهیر سقوط شي، ښه داده چې موږ د ګټې او لګښت ترمنځ یو انډول وساتو، خیر دی هغه څوک چې اقتصاد یې ډېر کمزوری وي، هغو ته دې په ټیټ قیمت وړاندې شي خو د وړیا ورکړې مخالف یم. ترکومه ځایه چې د قربانۍ خبره ده، ښه داده چې موږ زیات زیار وباسو ټولنې ته په مناسبه بیه او ښه کیفیت د ټولنې د اړتیا وړ اسانتیاوې وړاندې کړو، همدا خپله یوه نسبي قرباني ده او که موږ خپل هر څه قرباني کړو، په راتلونکي کې به مو هر څه له لاسه ورکړي وي او هېڅ به نه لرو چې ټولنې ته یې وړاندې کړو. او بل دا چې موږ خو د خلکو مرستو ودان کړي یو. زما خو اوس له وړیا ورکولو او مرستو نه دومره کرکه ده چې دغه مرستې د هېواد د ورانۍ اصلي لامل بولم وګوره روسانو او امریکایانو له موږ سره مرسته کوله او د نورې نړۍ هېوادونه هم تل مرستې کوي او راروانې دي. دا چې ټول مرستې کوي پوښتنه داده چې زموږ هېوادوال ولې وژل کېږي او هېواد مو ولې ورانېږي.

## له طالبانو سره خو دې هم څه ناڅه منډې ووهلې، په افغانستان کې ستاسو کار تر کومه بريده ګټور و او دی؟

لکه څنګه چې تاسو ټولو ته څرګنده ده چې زموږ ګران هېواد وران ويجاړ دی، هر څه وران شوي دي، موږ تل غواړو چې د هېواد په ابادۍ کې له خپلو نورو هېوادوالو سره اوږه پر اوږه خپله ونډه ولرو، کمپيوټر چې د هېواد په ابادۍ کې څه مرسته کولای شي له هغې مو چارواکي خبر کړي او تر خپله وسه مو هڅه کړې چې هغوی ته داسې مشوره ورکړو چې د هېواد په ګټه وي، اوس د هېواد په زيات شمېر ادارو کې زموږ پروګرامونه کارېږي.

کمپيوټر، برېښناليک يا ايمېل او انټرنټ زموږ له وران هېواد سره ډېره مرسته کولای شي، خو دا هله چې د کارولو لپاره يې کارکوونکي وروزل شي او هغوی ته دنده وروسپارل شي. پر ۱۹۹۷م کال موږ د مخابراتو وزارت ته يوه پروژه وړاندې کړه چې د هېواد لوی ښارونه د برېښناليک د شبکې په واسطه له نړۍ سره وتړو، تر څلور کلنو خبرو اترو وروسته د مخابراتو وزارت زموږ پروژه د وزيرانو شورا ته واستوله او په هغه شورا کې ځينو چارواکو هغه ناروا وګڼله همدارنګه موږ غوښتل چې هېواد ته د انټرنټ له لارې ټليفون راولو په دغه کار کې هم موږ ته اجازه رانه کړای شوه.

دغه راز موږ په کابل کې خپل دفتر جوړ کړ، خو بيا به هم ډېر زيات کسان پېښور ته راتلل نور خو پر ېږده کمپيوټرونه به يې په پېښور

کې زموږ له دفتر څخه اخیستل؛ بل دا چې په کابل کې له خپل دفتر سره زموږ د اړیکو ټینګولو ستونزې وې، همدارنګه چارواکو زموږ پروژې و نه منلې، له همدې کبله موږ د دغه دفتر ساتل غوره و نه ګڼل او بند مو کړ موږ په دغه چلند ډېر خپه یو، له هېوادوالو او چارواکو نه داهیله کوو چې په هېواد کې دننه کاروبار ته د ودې ورکولو لپاره له هغو شخصي ادارو سره چې په هېواد کې کار کوي همکاري وکړي.

**سره له دې چې اکثره پښتانه ستاسو کار ته په درنه سترګه ګوري او په غیاب کې مو ډېره ستاینه کوي، خو ځینې کسان وايي: ((یاره لېوال صیب ټول شیان په خپل نامه پورې تړي، تر ده وړاندې هم ډېرو خلکو پروګرامونه جوړ کړي خو دومره شهرت خوښې نه دي)) تاسو په دې باب څه وایئ؟**

لومړی خو دا چې د ځینو نورو په شان موږ هم څه ډېره غټه توره نه ده کړې، زه په ډېره خواشینۍ سره دا وایم زموږ کارونه چې زموږ ولس ته ستر برېښي، په دې هم زه خپه یم، ځکه ولې دوی ته دا واړه کاروه دومره ستر دي، خلک له ستورو سره خبرې کوي، موږ لا په ځمکه سره نه جوړېږو، یو بل نه شو زغملی، روا او ناروا مو لا نه دي پېژندلي.

ما د خپل ځان ستاینه نه ده کړې، خو یو څه به مې کړې وي چې خلک مې پېژني، په کتهوه کې که څه نه وي په څمځۍ کې څه نه راپورته کېږي ! دومره ستونزمن کار چې زه کوم که نور ترې خبر شي نو بیا به پوه شي چې دا هر څه په وړیا ډول نه رامنځته کېږي، همدې مینې او زیات کار زه یو ځای او بل ځای ښه او بد یاد کړی یم. په حقیقت کې زما د شهرت وسیله زما خپل کار دی او بس، خوشال بابا څه ښه فرمایي:

عشقه ته تر اورنګزېب پاچا بهتر یې
چې خوشال دې مشهور کړ په عالم

تر ما دمخه چې چا څومره کار کړی هغه به د هغو په نامه پورې تړلی وي. څوک د چا کار نه هېرولای او نه غلا کولای شي. زه ټولو هغو کسانو ته چې تر ما یې دمخه کار کړی هم په درنه سترګه ګورم او اوس چې څوک کار کوي هغو ته هم په درنه سترګه ګورم او هیله لرم چې نور به ترما ډېر څه وکړي خو ما او نورو کې توپیر دادی: زه چې څه کوم هغه په رښتینولۍ، مینه او بیا بیا هڅه کوم او کوم ملګري چې ګیله من دي دهغوی مثال د هغو زرکو دی چې سر په واورو ومنډي او وایي چې زه نړۍ نه وینم نو نړۍ ما هم نه ویني، له ګیلو نه څه نه جوړېږي، ما مخکې تاسو ته وویل چې نور د څه کار ترسره کولو په کار دي هغه باید وکړو.

او بله دا چې که دغو ګیله منو څه کړي وي او په هغو یې موږ او ولس نه یو خبر کړي، نو زه دوی بخیلان بولم چې یوازې د ځان لپاره یې کار کړی دی خو زه د ځان لپاره نه، بلکې د ټولنې لپاره کار کوم.

**يو بل انتقاد چې پر تاسو کېږي البته د پردې تر شا ((هغه دادی: ځينې کسان وايي چې لېوال صيب تجارتي اخلاق يا چلند د هغه پر فرهنګي هغو ډېر زورور ښکاري)) مانا دا چې لېوال له آره يو ګټيالی شخص دی نه فرهنګيالی، تاسو په دې باب څه وايئ؟**

ځينې کسان منفي نظر لري، د هر څيز د منفي اړخونو څېړنه يې خوښه وي، له خبرې خبره پيدا کوي، ځينې کسان چې په اصطلاح د فرهنګپالنې لاپې شاپې وهي، را دې شي او خپل کړی کار دې له موږ سره د انصاف له مخې پرتله کړي. موږ لاپې نه وهو خو کار کوو، د فرهنګپالنې او ګټې خبره موږ په دې ډول ارزوو چې کار کول خپله د فرهنګپالنې په مانا دی، او بل دا چې موږ کوم کار کوو هغه ته د ټولنې اړتياوي، د اړتياوو د پوره کولو او د اسانتياوو په رامنځته کولو سره د مشکلاتو له منځه وړل غواړو.

موږ تخنيکپوهنه مجله خپروو؛ په کتابي او کمپيوټري ډول د پښتو زده کړې مواد برابروو، همدارنګه پښتو ته مو د چاپي چارو ډېرې اسانتياوې برابرې کړي او برابروو يې. زموږ پروګرامونو چې پښتو ته د چاپ او خپرونې کومې اسانتياوې اوس برابرې کړي او د نن اکثره معتبره پښتو خپرونې ترې ګټه اخلي ايا دا فرهنګپالنه او د فرهنګي بهير د ودې ګړندي کول نه دي؟ که ځينې خلک داسې فکر

کوي چې خپل ټول وسایل په څو ورځو کې پر فرهنګ ولګوو نو بیا به فرهنګپال شم نه ګڼیالی، نو دا خو ځکه امکان نه لري چې هر څه به همدلته سقوط شي. بیا هم زه قضاوت درنو لوستونکو ته پرېږدم.

**دا نیوکې چې ما یې یادونه وکړه دا خو به غالباً تر تاسو نه وي رارسېدلې خو اوس دا راته ووایه چې د پښتنو او ناپښتنو له خوا د دومره زیاتو خدمتونو او هڅو له امله کله ستایل شوی هم یې او که نه؟**

زه پر خپله مسلمانۍ، پښتو، پښتونولۍ او د خپلو خلکو پر کارنامو ویاړم چې تل یې دنړۍ تولـه برابره ساتلې ده، تاریخ لیکلي چې سکندر له یونان نه راپاڅېده، چنګېز له منګولیا راولاړ شو، انګرېز له لندنه راپاڅېده او بیا لنډ روس ته ګوره چې:

لا تراوسه یې ماغزه په قرار نه دي
چاچې ماسره وهلی سر په ڼنګ دی

دوی ټولو غوښتل چې د نړۍ انډول خراب کړي او پر کمزورو هېوادونو خېټه واچوي همدا زموږ باتوران وو چې مات یې کړل او د کش شوي ربړ په شان بېرته پر خپل خپل ځای کېناستل، نو یون صیب! ته دا وایه چې د چا به زړه نه غواړي چې د داسې یوې غیرتي او مېړنۍ ټولنې خواخوږی او خدمتګار نه وي. سره له دې چې زموږ هېوادوال له ډېرو ستونزو څخه ستړي او ستومانه دي، بیا هم زه له دوی څخه ډېر زیات خوښ یم، ماته یې ډېر څه راکړي او راکوي یې، ډېر مې ستایي او زه له ټولو څخه د زړه له کومې مننه کوم. زما یو

ارمان دی چې زه دوی ټول سوکاله او خوشحاله وویـنم دوی چې خوشحاله وي نو موږ به خوشحاله يو موږ ته دهېواد پوهنتون، او داسې نورو غيردولتي ادارو او اشخاصو ډېر ستاينليکونه رالېږلي چې د قدر وړ دي، د هېوادوالو ټولو خپرونو زموږ سره ډېره همکاي کړې او کوي يې چې د منني وړ دي.

د ناپېښتنو په حساب په غټو کمپنيو کې د مايکروسافټ کمپنۍ، د اډوب کمنپۍ، د ملګرو ملتو دمعيارونو ادارې (ای اس او) يوني کوډ او داسې نورو ادارو زموږ کارونه ستايلي. همدارنګه په ګاونډيو هېوادو کې د پاکستان ساينس فاونډيشن موږ ته پر ۱۹۹۹ کال جايزه راکړه، پر انټرنټ ډېرو هېوادوالو او بهرنيانو زموږ ستاينه کړې چې د ايران ټايم ويبپاڼه هم په کې شامله ده.

## زه خو چې کله تاسو ګورم هر وخت د کمپيوټر مخې ته ناست يې هغه د چا خبره ((نړدې دی چې په کمپيوټر کې ننوزې)) دا راته وو ايه چې په شپه او ورځ کې څو ساعته کار کوې؟

زه د کال ټولې ورځې کار کوم له خوب نه پرته ټول ساعتونه د خپل کار، خپل ژوند او د هېواد د ډېرو ستونزو د حل په لټه کې يم. زما د برياليتوب راز هم دا ډېر کار او زغم دی چې د ناپيلون دغه نکل يې ډېر ښه تمثيلوي: د ناپيلون د شان او شوکت په زمانه کې دده دماشومتوب د وخت يو ملګری چې پر ده باندې په ورکوټوالي کې زورور و په ډېره حيرانتيا له ده څخه پوښتنه وکړه چې زه خو تا پېژنم

چې نه زما په شان زورور او نه له ما نه هوښيار وې، خو نن دې نه پرېږدم چې دا راز راته ونه وايې چې څنګه ناپيلون شوې؟

وايي چې ناپيلون ورته ويل: پرېږده دا ستا د وسې کار نه دی! تر ډېر ټينګار نه وروسته ناپيلون وويل چې خوله پرانيزه، خپله ګوته يې د هغه په خوله کې ورکړه او هغه ته يې ويل چې خپله ګوته د ده په خوله کې کېږدي، بيا يې غږ وکړ چې په غاښ يې کړه، ناپيلون د ملګري او ملګري د هغه پر ګوتې باندې زور راوړ، خو له څو شېبو وروسته يې ملګري وويل، پرېږده، پرېږده! د ناپيلون ګوته يې پرېښوده، خو ناپيلون لا هغه شان ګوته نيولې وه او نور زور يې ورکاوه، کله چې هغه ډېرې چغې وو هلې نو يې پرېښود، ورته يې وويل چې پوه شوې؟ ويې نه!

ورته يې وويل چې زما ګوتې هم ستا د ګوتې په شان درد کاوه، خو تا څو شېبو درد ته غاړه کېنښوده او زما ګوته دې پرېښوده، دغه زما د برياليتوب راز دی.

وايي:

بې زحمته راحت نه شته زما وروره
که راحت غواړې زحمت در لره بويه

## دومره ذهني بوختيا دې روغتيا ته زيان نه رسوي؟

زما په اند روغتيا هله خرابېږي، چې کله انسان قناعت ونه کړي، دخدای پاک پر ورکړل شويو نعمتونو چې ژوند، روغه ستړه، شتمني او نور وسايل دي قناعت ونه کړي، نېستۍ، رنځورۍ او ربړو ته يې له صبر سره سره دهغو د ښه کولو په لار کې همت او غيرت ونه کړي،

نو بیا ناروغ خو پرېږده روغه سته هم ناروغه شي، او ل دا چې خدای پاک انسان د ښېګڼې او عباداتو لپاره پیدا کړی دی، نو هر څوک چې قانع او هڅاند وي هومره د هغه روغتیا هم ښه وي. زه چې کله کار ونه کړم نو بیا ورو ورو راته احساسېږي چې د لټۍ خواته روان یم او دردونو ته مې خیال شي.

## څومره کسان دې تر اوسه پوې روزلي او په راتلونکي کې د کوم روزنیز مرکز د جوړولو نیت لرې او که نه؟ او که لرې یې دا به څنګه او چېرته وي؟

زه خپله پر زده کړه، څېړنه او جوړونه دومره بوخت یم چې ځان د ښوولو جوګه نه بولم، که ژوند و او خدای پاک راسره مل و او د هېواد پوهنتونونو د کمپیوټر د زده کړې په څانګه کې څه ګامونه پورته کړل، او چاروا کو راسره همکاري وکړه نو په هېواد کې به د کمپیوټر د پروګرامونو د جوړولو یوه داسې اداره جوړوم چې نه یوازې د هېواد کمپیوټري ستونزې حل کړي، بلکې له نورې نړۍ سره مرسته او کاروبار هم وکړو.

خو په بنسټیز ډول زه دې ځلورو کارونو ته د سوداګریزې بڼې ورکولو کلک مخالف یم. لومړی مذهب، دویم مشرتوب او حکومت، دریېم زده کړه او څلورم روغتیا پالنه او رنځپوهنه. باید ټولنه او حکومت دغو څلورو مسلکوالو ته د ژوند ټولې اسانتیاوې برابرې کړي، چې دوی د خپلې خېټې او کورنۍ د خړوب لپاره د نورو ژوند ته خطر نه شي.

کـه څـه هـم مـوږ د روزنـې مرکـز نـه لـرو ، خـو چـې څـوک هـم زمـوږ پروګرامونه زده کوي هغوی ته یې په خپـل دفتـر کې وړیـا ورښـیو او تراوسه موږ په دغه طریقه په لسګونو کسان روزلي چې اوس په دولتي او غیردولتي ادارو کې کار کوي.

## اوس پر کومو نوښتګرو هڅو بوخت یې یانې کوم نوي پروګرامونه دې ترلاس لاندې دي؟

اوس پر دې لګیا یم چې کمپیوټر څنګه کره او سمه پښتو ولیکي، نـو د دې لپـاره پښـتو کمپیـوټري قـاموس جـوړول پـه کـار دي، دا قاموس اوس زموږ تر کار لاندې دی، ددغه قاموس دجوړونې طریقه داده چې موږ اوس ټول پښـتو قاموسونه چې تراوسه په پښـتو کې شته هغه کمپیوټر ته وراچوو او بیا هغه د پښتنو د شپږو غټو لهجو په پښـتو پوهانو ګورو چې د هغـه کره پښـتو ټکي پـه صحیح املا کمپیوټري قاموس کې ځای پر ځای شي.

همدارنګه لاندې کارونو باندې کار کوم:

د کمپیوټر په واسطه پښتو لوستل، دلوست کمپیوتري پروګرام؛ پښـتو سـکین کـول یـا لیکـل شـوي مـتن لـه ټایـپ کولـو څخـه پرتـه کمپیوټر ته ورل، پښـتو ویبـانې جوړول؛ د ټولـو پښـتو پروګرامونـو ترمنځ د لیکل شوي متن وړل او راوړل؛ په جاوا کې پښتو لیکل؛ پـه یونیکس کې پښتو لیکل او لوستل؛ همدارنګه د یودوه کتابونو پـر لیکلو او د کمپیوټري اصطلاحاتو پر ډیکشنری اخته یم.

**څو ځله دې ليکوالو ته په ډېر ټينګار سره ويلي چې کمپيوټر زده کړي، دا د وخت غوښتنه ده، ستاسو په نظر کـه هـر پښـتون ليکـوال کمپيـوټر زده کـړي، د ليکـوال پـه کـار کـې بـه څـومره اسـانتياوې راشـي او پښتو ژبې ته به يې ګټه څومره وي؟**

زما پـه خيـال پـه دې يوه لسـيزه کې کمپيوټر پـه خـاص ډول پښـتو کمپيـوټر د پښـتو اثـارو چـاپ تـه سـرعت ورکړ. پخـوا بـه کـه يـو اثـر چاپېده نو مخکې تر مخکې به يوه خطاط تـه سپارل کېده. مياشـتې مياشتې به پرې اوښتې او تر ډېر شواخون وروسته به لوسـتونکو تـه رسـېده، خـو اوس پـه اوونـۍ کـې د يـو څـو تـازه کتـابونو او مجلـو د چاپ شاهدان يو، نن سبا دکتابونو دچاپ بازار ګرم دی او دفرهنګي ارزښـتونو ترڅنګ دغـه کتابونـه ليکوالـو تـه اقتصـادي ارزښـت هـم لري، مانـا دا چې پـه يوه ژبـه کې څومره ډېر اثـار خپـاره شـي دومـره لوستونکي هم پيدا کوي.

هرې ژبې چې ډېر لوستونکي پيدا کړل داسې يې وبولـه چې دغـه ژبه د اوج خوا ته روانه ده. همدارنګه د ژبې پرمختيـا د ليکـوال لپـاره اقتصادي پرمختيا ده، ښه ليکنه ښه اقتصادي ګټه هم لاسـته راوړی شي، همدارنګه د ليکنو اقتصادي بازار چې څومره ګرم وي هومره د ليکنـو معنـوي ځـلا هـم لـوړېږي او دغـه شـان يـو شـهکار بـل تـه لار پرانيـزي، يـوه ژبـه او دهغـې ژبې ادب پـه همـدې ډول افـاقي حيثيـت پيدا کوي.

که پښتو ژبه له دوو لسیزو مخکې وختونو سره پرتله کړو یو کیفي بدلون په کې راغلی دی، دا بدلون که له یوې خوا د لیکوالو په هنري او تخلیقي لوړتیا پورې تړو، له بله پلوه د کمپیوټر او چاپ له تخنیکي اسانتیاوو څخه هم انکار نه شو کولای، په عاجزۍ به درته ووایم چې د کمپیوټر په برخه کې همدا زموږ پښتو پروګرامونو او هلو ځلو ډېر داسې کسان دي ته هڅولي چې کتابونه لیکل ورته اسان کار ښکاري او بل داسې کسان مو روزلي چې د پښتو لیکنو په کمپوزولو کې ډېر ماهر دي. زموږ له کمپوزرانو څخه نن یو شمېر لیکوال دي چې د قلم زور یې د کمپیوټر په ملګرتیا ورته ډېرې دروازې پرانیستي او نن سبا یو کس او یو کمپیوټر پوره یوه مجله چې پخوا په کې د لسګونو کسانو اړتیا وه په یوازې ځان راوباسي.

## له تخنیکي او طباعتي پلوه اوس پښتو ژبه د نړۍ له نورو یادو ژبو سره سیالي کولای شي؟

په تخنیکي چارو کې اوس پښتو له انګرېزۍ سره خوا په خوا تللای شي، ځکه چې اوس په امریکا کې هم خلک د انګرېزي لیکنو لپاره دغه ویندوز ۹۵، ویندوز ۹۸، ویندوز ۲ زره او د ویندوز پروګرامونه کاروي او دلته هم کارېږي. همدارنګه په طباعت او طراحۍ کې ((کورلډرا)) په ټوله نړۍ کې کارول کېږي چې اوس پښتو هم د انګرېزي په څېر په کې کارېدی شي، زموږ پښتو شوي پروګرامونه نن سبا د دولتي او شخصي ادارو او عامو هېوادوالو هره کمپیوټري اړتیا پوره کوي او هغوی ترې کار اخیستلای شي.

**لکه څنګه چې ماته معلومه ده تاسې بهر ته ډېر ځله تللي یاست او بیا هم تللای شئ او هم هلته پاتې کېدو امکانات درته ډېر زیات دي، ولې مو دا ځای غوره کړی دی؟**

دلته زما د پاتې کېدو اصلي وجه داده چې د دربیمې نړۍ خلکو او په ځانګړې ډول زموږ له هېوادوالو سره دا مفکوره ده چې موږ د پرمختللو هېوادونو د اوسېدونکو په څېر کار نه شو کولای، دهغو په شان وسیلې زموږ سره نه شته، خو له کومې ورځې چې زه پر ښو او بدو پوهېدلی یم، د دوی له دغې مفکورې څخه خپه یم او په دې هڅه کې یم، هغه کارونه وکړم چې دوی یې ناشوني بولي. نو د کمپیوټر پروګرامونه پښتو ته اړول هم ددغې لړۍ یوه کړۍ ده. که موږ کار وکړو له هغو خلکو څخه موږ ډېر تکړه او غښتلي یو، په دې کې شک نه شته چې ډېر پرمختللي هېوادونه ښې زرخېزه ځمکې او ښه اقلیم لري چې دوی په خپله ماړه ساتي.

او د نورو اسانتیاوو د برابرولو لپاره هڅې کوي. زموږ هېواد هم یو ښه زراعتي هېواد دی، خو که موږ د نورو د ملامتولو پرځای متې راونغښتې او د جګړو، تربګنیو پرځای مو کار وکړ او د یو بل د پرځولو پرځای مو له یو بل سره مرسته وکړه، نو د نورې نړۍ په څېر که موږ کار وکړو له هغو خلکو څخه موږ ډېر تکړه او غښتلي یو، تر دوی به ډېر پرمختګ وکړو او ټول به خوشحاله او سوکاله شو.

## تاسو د یو افغان کمپیوټر پوه په توګه د تخنیکي پرمختګونو له پلوه د پښتو ژبې او پښتنو راتلونکی څنګه ارزوئ؟

پښتو ژبه به هله د نړۍ له نورو ژبو سره سیالي کوي چې پښتانه سیالۍ ته چمتو او له دغو ستونزو څخه فارغ شي چې اوس زموږ په هېواد کې روانې دي. پښتو تر هغه پرمختګ نه شي کولای چې پښتانه مخکې شوي نه وي، پښتانه او پښتو باید یوشان پرمختګ وکړي، اوس ربړه داده چې ځینو پښتنو دومره پرمختګ وکړ چې له پښتو څخه ووتل او په ځینو خپرونو کې پښتو دومره پرمختګ وکړ چې پښتانه پرې نه پوهېږي.

خو بیا هم اوس پښتو کال پر کال د پرمختللو ژبو پړاو ته ځان نږدې کوي، خو پښتنو ته د پښتو لیکنو پر کیفیت ډېر ټینګار په کار دی، په پښتو کې علمي او مذهبي لیکنې ډېرول او ښه کول د وخت اړتیا ده، مطلب دا چې پښتو د حکومت، سوداګرۍ او د علم ژبه کول په کار دي. پښتو اوس یوازې زموږ د پښتو ادب غیرتمندو په خپلو بېشانه خواریو راټینګه کړې ده، نورو تخنیکي او علمي کارونو په کې چنداني پرمختګ نه دی کړی.

## د پښتو ژبې د پرمختګ لپاره د تخنیکي چارو د ماهرینو او لیکوالو ګډو هڅو او هلو ځلو ته اړتیا شته او که نه؟

وايي چې (کوم کار په سلا وي هغه بې بلاوي)، د ژوند په هر يو ډګر کې ګډ کار ته اړتيا شته، په ګډه کار کولو کې برکت وي، په ګډه کار کې زده کړه هم کېږي، وخت هم نه ضايع کېږي او سرچينې هم نه خرابېږي. زه خو چې هر وړوکی او لوی کار کوم، په هغه کې لومړی له هغه چا څخه مشوره اخلم چې په هغه کې ډېره ښه پوهه لري او بيا له هغو کسانو سره خپله مفکوره شريکوم چې څه پروګرام ورته جوړوم يا څه کار ورته کوم.

د مثال په ډول کمپيوټر ته د پښتو تورو اچولو نه مخکې ما له هر پښتو پوه او ليکوال سره مشوره کړې. همدارنګه اوس مو د ماشومانو لپاره د پښتو زده کړې يو پروګرام جوړوو چې پر يو يو ټکي يې ما له پوهانو څخه مشوره اخيستې او بيا مې کار کړی چې يو پړاو يې جوړ شي پر خپلو ماشومانو يې په بشپړ ډول څو څو ځله ازمويم.

خدای پاک دې هغه ورځ راولي چې زموږ چارواکي هم دغه چلند خپل کړي او کله چې يو کار کوي، په هغه کې د خپل ولس له پوهانو او بيا خپله له ولس څخه مشوره وغواړي او هر کار په خپل سر و نه کړي، که نه نو د دوی وړه تېروتنه به د مليونونو وګړو ژوند ته ګواښ وي، او دوی به خپله هم په کې راګير وي.

## هيله لرم يوه لويه او کوچنۍ هيله دې هم بيان کړې؟

زما هيله او غوښتنه له خپلو هېوادوالو او د دربېمې نړۍ له خلکو نه دا ده چې دا مفکوره له خپلو مغزو نه وباسي چې موږ له

چانه کم یو او د بل چا په شان کارونه نه شو کولای، زه وینم چې دوی له نورو څخه ډېر تکړه دي خو که لږ زیار وباسي، نو ډېر برې به ترلاسه کړي، زه دوی ته دا هم په ډاګه وایم چې استعمارګر له بېلابېلو لارو هڅه کوي چې تاسې داسې وپوهوي چې ګواکې تاسې څه نه شئ کولای !

له خپلو سیاسي ورونو څخه په ځانګړي ډول د خدای(ج) لپاره هیله کوم چې کله قدرت ته ورسېږي، له ټولواکۍ څخه دې لاس واخلي، نن سبا په نړۍ کې هر یو مسلک ډېر زیات اختصاصي شوی او هر سړی هر څه نه شي کولای، پر خپلو خلکو دې اعتماد وکړي، څه دې خپله وکړي او څه دې نورو ته پرېږدي او چې کوم کار خپله نه شي کولی هغه دې ضرور نورو ته پرېږدي. دولتي انحصارات دې پایته ورسوي، خپلو خلکو ته دې پر بهرنیو کمپنیو ترجیح ورکړي، حکومت او سیاست دې یوازې لارښوونې، څارنې یا کنټرول او ساتنې ته متوجه کړي.

د صنعت، سوداګرۍ، تجارت او نورو اسانتیاوو برابرول دې دې خلکو ته پرېږدي او د حکومت د چلښت لپاره دې مالیه زیاته کړي، حکومت دې خپله تجارت نه کوي، څوک یې چې ښه او بد مخالفت کوي، هغه دې نه ځوروي، هر مخالف دښمن نه وي، نو هله به دوی او نورو هېوادوالو ته په هېواد کې د سوليېز ژوند لار برابره شي. خدای دې هغه ورځ راولي چې ټول هېوادوال د ورونو په شان یو له بل سره (( تېر په هېر )) معامله کړي او په راتلونکي کې ټول د نېکو کارونو ژمنه وکړي، زما هیله همدا ده.

## د پښتو ژبې د غوړېدو په تحریک کې باید منفي او افراطي ذهنیتونه ځای ونه لري

ښاغلی عبدالوکیل شینواری د هېواد یو ځوان، تکړه او پیاوړی لیکوال دی. په لنډه کیسه او نورو ټولنیزو، سیاسي، پوهنیزو او تحلیلي لیکنو کې لوی لاس لري، تراوسه یې په ګڼو خپرونو کې یو شمېر په زړه پورې لنډې کیسې او نورې پوهنیزې او



څېړنیزې لیکنې خپرې شوې دي. سربېره پر دې یې یو شمېر فرهنګي خدمتونه هم ترسره کړي دي، دا مرکه یې د هیلې مجلې د ۱۳۷۹ل کال په څلورمه ګڼه کې شوې ده، چې ستاسو پام ورته را اړوو:

**خپل ځان او د خپل فرهنګي ژوند څومره والی او څرنګوالی راته په لنډه توګه راوپېژنئ؟**

له ډېر خام عمر نه مې له ادب سره په زړه کې د مينې ګلان راټوکېدلي او لکه د هېواد د ډېرو نورو ليکوالو په څېر زما ادبي خوځون هم پر شعر پيل شوی دی. په څلورم ټولګي کې وم چې شعر مې وليکه دا چې څنګه شعر و، ښه مې په ياد کې نه دي پاتې خو ډېره کليوالي ښه يې درلوده، دويم شعر مې پسرلی نومېده، پر دغه وخت په شپږم ټولګي کې وم. خدای بښلي سيد محمد طاهر بينا ډېرې کمونې او سمونې په کې راوستې. دا زما لومړنی شعر و چې په ننګرهار ورځپاڼه کې خپور شو. وروسته مې د شعرونو ترڅنګ د ادبي ټوټو پر کښلو هم لاس پورې کړ، چې زياتې يې په ننګرهار ورځپاڼه او مجله کې خپرې شوې دي، پر **۱۳۵۷**ل کال کې مې لومړنی لنډ داستان د: (( هغه وړی و )) تر سرليک لاندې وکښه چې سملاسي په انيس ورځپاڼه کې خپور شو. که رښتيا وو ايم داستان ته نه پاتې کېده، خو دا چې د وخت حاکمې سلطې پر مزاج برابر و او څه به زما د هڅونې موخه هم په کې ملهوه راته خپور يې کړ.

د شعرونو، ادبي ټوټو او داستانونو ترڅنګ مې وروسته د ډرامو ليکلو ته مخه شوه، که رښتيا راباندې وايې، زما له ډرامې او تمثيل نړۍ سره لېونۍ مينه وه، لا ډېر کوچنی وم، چې د راډيو افغانستان پرله پسې راډيويي ډرامې مې يوه هم نه قضا کوله او له اورېدو نه مې ډېر خوند اخيسته. پر **۱۳۵۸**ل کال مې د لومړي ځل لپاره راډيويي پرله پسې ډرامه (( د غچ اور )) وليکه، پر دغه وخت په لسم ټولګي کې پر زده کړو بوخت وم. دا ډرامه ډېر ژر له دغې راډيو څخه خپره شوه، تر دې وروسته مې پر بل کال بل نکل (( هغه څنګه لېونی شو )) هم خپور شو. د ښوونځي د زده کړو په بهير کې مې د ښوونځي زده

کوونکو ته ځینې سټېج ډرامې لیکلې، په خپله مې هم د لوبغاړي په توګه په کې برخه اخیستې.

د ډرامو تر لیکلو وروسته ورو، ورو له شعره لرې کېدم او داسې یو وخت راورسېد چې ما نوره له شعر لیکلو سره بېخي مخه ښه وکړه، ما نه یوازې د ډرامو پر لیکلو ګوتې پورې کړې، بلکې د ډرامې په باب مې لیکل او لوستل هم پیل کړل.

پر ۱۳۶۲ل کال د پنځو کلونو لپاره د لوړو زده کړو په موخه (بېلا روسیې) جمهوریت ته لاړم، په دغه موده کې ما هېڅ ونه لیکل خو کله چې راوګرځېدم بېرته مې ادبي هستونې وکړې، تر دې وروسته مې د لیکنې تر څنګ ژباړه هم پیل کړه، خو له بده مرغه زما د ژباړې تر ادبي برخې نورې متفرقې ژباړې درنې دي او زه پر دې کار ډېر پښېمانه یم.

په دغو کلونو کې مې سینما ته هم مخه شوه او څه لیکنې مې د سینما د هنر په هکله هم ولیکلې، سره له دې چې ما د سینما او ډرامې له هنر سره خورا کمه بلدتیا لرله او په دې برخه کې مې هېڅ ډول زده کړه نه وه کړې، خو دا چې د پښتني هنر دا برخه خورا ډېره کمزورې وه، د یو رسالت له مخې مې دا کار وکړ، په دغو کلونو کې مې یوه نیمه تمثیلي ډرامه هم ولیکله چې د راډیو تلویزیون له لارې خپرې شوې دي.

پر ۱۳۷۱ل کال مې یوې ډرامې (څوکۍ) د افغانستان د هنرمندانو د اتحادیې له خوا نقدي جایزه واخیسته.

کله چې په افغانستان کې وم، د ادبي هستونو زياته برخه مې ژباړې او د ډرامې په باب ليکنو جوړوله، خو پر ۱۹۹۳م کال کله چې پېښور ته راکډه شوم ټوله مخه مې لنډو کيسو ته شوه، خو بيا مې هم ډېرې کيسې ونه ليکلې، خو هغه څه چې مې وليکل، زما له پخوانيو کيسو سره يې ډېر توپير درلود، دا چې دا کيسې مې د کيسو پر معيار سره برابرې دي که نه؟ پرې نه غږېږم، خو يوه خبره چې بايد ويې کړم په دې لار کې ماته ډېر نږدې دوستان ګران هېوادمل صاحب، کاروان صاحب، اسدجان غضنفر، نثار، سالک، عابد... او نور زما ډېر هڅوونکي دي، د دوی ډاډ زما د کيسه ليکنې په روزنه او هڅونه کې لوی ځای لري.

له بده مرغه چې زه د خپل تخليق او ژباړې هېڅ جونګ نه لرم او دا هر څه خواره واره دي، خدای تعالی(ج) دې بری راکړي، چې که نور نه وي د خپلو کيسو يو جونګ خو په خير خپور کړم.

## د چاپېريال بدلون د يو ليکوال پر هنري زېږونو څه اغېز لري او تاسې خپل مثال هم وړاندې کړئ؟

څرګنده خبره ده چې د چاپېريال بدلون د يوه ليکوال پر هنري زېږونو خورا اغېزناک دی. په نوي چاپېريال کې ليکوال نوی انسان، د هغه غوښتنې، هيلې او ... وينې او له نورو اقتصادي، ټولنيزو او کلتوري اړيکو سره اشنا کېږي او طبيعي ده چې په نوي چاپېريال کې به د هغه تخليق ارو مرو له دغو مناسباتو نه اغېزمن وي، خو يوه خبره چې روښانه او د ليکوال د بري رمز دی، په نوي چاپېريال کې د هغه د خپل وطن د انساني ارمانونو انځور دی. زما په اند که موږ يا

د بل هېواد ليکوال وغواړي په دې چاپېريال کې د پردي انسان په انځورونه يې د خپلې ټولنې انسان هېر کړي، اثر به يې ډېر بې خونده پنځولی وي نن د نړۍ ډېر شاهکارونه شته چې ليکوالو يې په پردېسۍ کې ليکلي دي، خو کيسې يې د خپل وطن او خپلو انسانانو دي.

له ښه مرغه زموږ ځيني پردېس ليکوال په دغه برخه کې ډېر بريالي دي ښه بېلګه يې د شپون صاحب ګټيالی نومې ناول دی. پردېسۍ زما پر هستونو هم خپل اغېز ښندلی درې ځلور کيسې مې د پردېسۍ د چاپېريال کيسې دي. له بده مرغه د پردېسۍ په دغه ټوله موده کې مې يوازې همدومره وليکلای شول.

## تاسو خو د نړۍ په يو شمېر هېوادونو کې وګرځېدلئ، په ټوليز ډول د نړۍ په ادبي بهير کې کوم مسايل زيات مطرح دي؟

سره له دې چې اوسنۍ صنعتي نړۍ د خپل پرمختګ لوړو پوړيو ته رسېدلې او دغه پرمختګ د هرې ورځې په تېرېدو سره چټکېږي، خو دغو پرمختګونو ډېرې ستونزې هم رامنځته کړي، د چاپېريال ککړتيا، د ذروي وسلو مسابقې، ماشيني ژوند، کلتوري انحطاط او نوره... دغه نړۍ له جدي ګواښ سره مخامخ کړې ده. د صنعتي نړۍ د نننيو آثارو ګڼ موضوعات همدغه ستونزې جوړوي. نننۍ صنعتي پرمختګونه نه يوازې د آثارو پر مضمون خورا اغېزناک دي، بلکې تر ډېره يې د آثارو کلاسيکو بڼو ته هم بدلون ورکړی دی.

## ځینې وخت ځینې ادبي پنځونې د خوشحالۍ او غم د اوج له کبله راټوکېږي تاسو دا مسئله څنګه ارزوئ؟

خوښي او غم، عواطف او احساسات زېږوي، چې د یوه هنري اثر د هستونې د خوځون اصلي محرک دی او د هرې خوشحالۍ او غم تر شا بیا ځانګړې پېښې او شېبې پټې وي. د نړۍ زیات ادبي شاهکارونه د ځانګړو تاریخي پېښو محصول دي، ښه بېلګه یې د الکسي تولستوي ((سوله او جګړه)) ده چې له ناپلیون سره د روسانو د (۱۸۱۲-۱۸۱۴) کلونو د جګړې نادودې بیانوي او یا هم د ارنست همینګوی (له ټوپک سره مخه ښه) چې د لومړۍ نړیوالې جګړې د بدمرغیو انځور کاږي.

زموږ ډېر آثار هم زموږ د کورنۍ جګړې د بدمرغیو انځورونه دي، خو خدای تعالی(ج) دې وکړي چې زموږ لیکوال زموږ د کړېدلي ولس د خوښۍ او هوساینې د شېبو انځورونه هم په خپلو تخلیقاتو کې وکاږي.

## موږ بهر ته ستاسو تر تګ وړاندې ستاسو یو شمېر لنډې کیسې لوستې دي، خو اوس دې د لنډو کیسو څرک نه لیدل کېږي، علت یې څه دی؟

تاسو پوهېږئ، بهر ته تګ دومره اسانه خبره نه ده، زه چې کله کډوال شوم، پوره یو کال د یو ګونګ او نامعلوم برخلیک په لومو

کې ښکېل وم او که رښتیا درته ووایم، نه یوازې دا چې لیکلو ته مې تابیا نه جوړېدله، بلکې د لوستلو پر وخت به هم تل په ډېرو نورو چرتونو کې لاهو وم، وروسته کله چې مې برخلیک معلوم او دعا مې قبوله شوه او د سیاسي کډوال په توګه ومنل شوم په دغه هېواد کې چې اوسېږم پوره ډېر وخت مې د کار روزګار لټون ونیوه بیا رابانديې د کارونو او بوختیاوو بوج شو.

بـل علـت یـې د فرهنګـي دوسـتانو لرېـوالی هـم و، زه چـې پـه کـې اسـتوګن یـم دا هېـواد د جرمنـي، انګلسـتان، امریکـا، کانـاډا، روسیې، هالینډ او نورو په څېر له لیکوالو او فرهنګي کړیو نه ډک نه دی، چې سړی اړ او وهڅول شي او زه ځینې ملامتیاوې پر خپـل ځـان هـم اچـوم. کـه رښـتیا رابانـدې وایـې مـوږ ټولـو لیکوالـو او فرهنګیانو هومره چې مو په خپل وطن کې په خوند او مزې لیکنې کولې، دلته یې نه شو کولای.

زموږ ځینې لیکوال وایي: هغه افغان لیکوال چې په بهر کې اوسي، طبعاً یې یوه بهرنۍ ژبه زده ده، که چېرې د دوی لپاره زیات وخت د څېړنیز او تخلیقي کـار امکانـات نـه وي، نـو ښـه لاره داده چـې دوی د ژبـاړې لـه لارې فرهنګي خدمت وکړي، ستاسو هم بهرنۍ ژبې زده دي، نو بیا ولې ژباړې نه کوئ؟

دا ښه خبره ده، ډېرو ليکوالو تر ډېره حده دا کار کړی دی، دا چې زه ولې تر نورو ډېر وروسته پاتې يم، دوه علتونه لري، يو دا چې له دغې ژبې سره هومره اشنا نه يم چې ښه ژباړه پرې وکړم او بله دا چې دغه هېواد لکه د دې سيمې د نورو هېوادونو په څېر دومره وتلي ليکوال او آثار نه لري.

## په بهر کې د مېشتو افغان فرهنګيانو د فرهنګي کار د سمون او خوځون لپاره څه وړانديزونه لرئ؟

له بده مرغه په بهر کې د افغانانو د سياسي اتحاديو او جريانونو په څېر د هغوی فرهنګي ټولنې هم ډېرې متفرقې دي او د کار او فعاليت ډېره برخه يې له يوه بل سره دښمني جوړوي، چې دا يوه لويه بدمرغي ده، زما له نظره به ښه وي، که دغه فرهنګي حلقې په يوه واحد مرکز کې راټولې وي زه د دغو ټولنو د ډېروالي مخالف نه يم خو دوی بايد د خپلو ځانګړو غوښتنو ترڅنګ يو واحد هدف تعقيب کړي.

زما په اند به ډېر ښه وي، که په اروپا او امريکا کې بېلابېلې لويې فرهنګي ټولنې جوړې شي او بيا د دغو ټولنو د کار اساسي مرکز زموږ هېواد يا پېښور ښار وټاکل شي او دلته پر يوه معين، هدفمند او پراخ فرهنګي کار پيل وشي دا کار څه ستونزې لري خو ناشونی نه دی.

## اوس، اوس بهر ته د افغانانو د تګ لړۍ په ډېر شدت سره روانه ده، که دا لړۍ همداسې روانه وي نو په

## هېواد کې به پر څه پوه خلک پاتې نه شي، دا کار څه ډول ارزوئ؟

دا زموږ د وطن د کورنۍ جګړې په څېر یوه تراژیدي او یوه لویه بدمرغي ده که دا لړۍ په همدغه قوت روانه وي، ددې پایلې خورا ډېرې خرابې وینم. دا سمه ده، هلته د ژوند شرایط خورا ښه دي، خو هلته هم زموږ پر وګړو د بې شمېره غمونو پېټې پرېوزي د نورو ترلاس لاندې هر ډول کارونه، ماشیني ژوند، پردېسي، حقارت... او ډېر داسې نور چې په رښتیا سړی ډېر ځوروي. تر هر څه زیات زموږ د کوچنیانو د ملي هویت او غرور روزنې مسئله د اندېښنې وړ ده، اوس خو ډېرو کورنیو ته دا ساده برېښي، خو ډېر ژر به یې سرونه له دې کبله ځړیکې پیل کړي او د ډېرې زیاتې خواشینۍ ځای دی، چې په بهر کې مېشت افغانان د دغې ستونزې د حل په هکله ډېر کم په خپلو منځو کې د یو عملي مېکانیزم په باب غږېدلي دي.

## په هېواد کې د لنډې کیسې د څرنګوالي په باب څه نظر لرئ؟

هسې چې د لنډې کیسې عمر د ادبیاتو په تاریخ کې کم دی، زموږ د لیکوالو تجربې هم ډېرې اوسنۍ دي. سره له دې چې پر پښتو لنډې کیسې له پیله پوره شپږ اوه لسیزې تېرېږي خو ایله وروستنۍ دوه، درې لسیزې د لنډو کیسو ډګر لږ تود کړی دی، په دغه موده کې تر ډېره حده پر معیارونو برابرې کیسې کښل شوي، خو له بده مرغه زموږ

کیسه زمونږ د شعر په ځېر لا نه ده پخه شوې او لا هم زمونږ کیسه لیکونکو ته په دې ډګر کې ډېر مزلونه پاتې دي.

**لکه څنګه چې ما ته معلومه ده، په جرمني کې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې پتېیلې چې هر کال په ځېړنیز، ادبي او پوهنیز ډګر کې افغان لیکوالو ته جایزې او ستاینلیکونه ورکړي، ددې کار مالي لګښت تاسو پر غاړه اخیستی، ددې کار اصلي موخه مو څه ده؟ ایا نور کسان هم باید په دې لړ کې شامل شي که نه؟**

ددې کار موخې دوه دي: یو دا چې نور مې د داسې ورته ګامونو اوچتولو ته هڅولي وي او بل مې خپل فرهنګیان د ښو او نایابو اثارو کښلو ته هڅولي وي.

**په اوسنیو وختونو کې د هېواد لپاره په کم کیفیت ډېرې خپرونې ښې دي او که په ښه کیفیت کمې خپرونې؟**

زما په اند په اوسنیو وختونو کې په ښه کیفیت کمې خپرونې ښې دي، اوس خو که رښتیا ووایو، د خپرونو ډېرو شمېرو د خپرونو ارزښت ډېر کم کړی. بې کیفیته خپرونې نه یوازې دا چې د وخت او

پیسو بې ځایه لګښت دی، بلکې تر ډېره حده زموږ په چاپېریال کې د لوستلو خوند هم له منځه وړي.

**بهر ته تګ او هلته استوګنه یا ژوند کول مو په هېواد کې له استوګنې سره څه ډول پرتله کوئ؟ مانا دا چې څه دې له لاسه ورکړي او څه دې ترلاسه کړي دي؟**

په بهرني ژوند کې خو مې ارومرو څه ګټه کړې: یوه مې بهرنۍ ژبه زده کړه، له نوي اقتصادي او کلتوري مناسباتو سره بلد شوم، اقتصادي برلاسی مې ترلاسه کړ، ... خو ډېر څه مې له لاسه هم ورکړي، پردېسي، ددې هېواد د ځینو وګړو کرکجن تو پیري نژادي چلند، د خپلو خلکو، کور، وطن، خپلوانو او دوستانو ځنې لرېوالی... هغه څه دي چې سړی خورا ځوروي، تر ټولو غټه خبره د هغه اشتیاق او مینې مړینه ده چې د هغو له مخې مې پرله پسې لیکنې کولې.

**د خپل شخصي او فرهنګي ژوند کومه خوږه او ترخه خاطره که راته ووایې؟**

له شخصي ژونده به یې را واخلم دا زما د پردېسۍ یوه خاطره ده: کله چې په هنګري کې وم او سلواک ته مې د تېښتې لار لټوله، د ژمي میاشت وه، موږ باید په یوه لویه ویاله پورې وتي وای او په سلواک کې مو ځان د دغه هېواد مرکز پراستلاو ته ور رسولی وای، خو دا راته ډېره سخته وه، ځکه نه خو مې لامبو زده وه او نه مې هم سلواک لیدلی و.

درې حملو ګوانښ راته کاوه: د ژمي سختو سړو ، په وياله کې ډوبېدل او په لار کې ورکېدل، خو پر دغو ټولو مې سترګې پټې کړې، ځان مې اوبو ته وا چاوه، نېغ راپورې وتم او په ډېر ښه شان خپل منزل ته راورسېدم. دويمه فرهنګي خاطره مې دا ((زنګونه، اټکلونه)) لنډه داستان دی.

## ستاسو په نظر پښتو ژبې ته او سنی فرهنګي کار د هيلو وړ دی که د نهيليو؟

زما له نظره پښتو ژبې ته او سنی کار ښه دی، خو دا کار بايد لږ څه سيستيماتيکه بڼه ونيسي، لا د پښتو ژبې عملي رسمي کولو او عامولو ته ډېره لار پاتې ده.

يو شی چې زه يې ډېر مخالف يم، هغه دا دی چې پښتو ژبې د غوړېدو په تحريک کې بايد منفي او افراطي ذهنيتونه ځای ونه لري.

په غرونو کې ښېښتر وي او په کلي کې چنار
په زړه کې مګر ځانګې ځانګې وغزېږي يار

# د چنارونو او ښېښترو شاعر

پيرمحمد کاروان د هېواد پياوړی او نوميالی شاعر دی، د عمر د ځوانۍ په شېبو کې يې د شعر دمينې خوږې وږمې پر ټول هېواد خورې ورې شوې. مينه، عاطفه، لوړ انساني ارزښتونه، هېواد پالنه او رنګينه ښکلا د ده په شعر کې په ځپو دي. کاروان تر اوسه



پورې ((له ماښامه تر ماښامه)) او ((چنار خبرې کوي)) په نومونو د شعرونو دوه ټولګې او ((له نرګسه تر نرګسه)) د لنډو کيسو يوه ټولګه خپرې کړې دي. زموږ د وخت د يوه افغان کره کتونکي او ليکوال په وينا که پښتانه

یو ویشتمې پېړۍ ته له شلمې پېړۍ نه کومه ډالۍ لري، نو یوه به پکې ((چنار خبرې کوي))، د کاروان ښکلې شعري ټولګه وي. د هیلې مجلې د ۱۳۷۸ل کال په دریمه ګڼه کې د کاروان صاحب دا مرکه چاپ شوې، چې تاسې یې لوستلو ته رابولو:

## له څه وخت راهیسې دې شاعري پیل کړې ده؟

که له شاعرۍ نه دې مطلب د شعر په نامه د کتابونو خپرول، په غونډو کې شعر اورول، په مجلو، راډیو او ورځپاڼو کې د شعر په نامه د یو څه خپرول وي، نو زیات و کم پنځلس شپاړس کاله به کېږي.

## ستا د شاعرۍ اساسي لاملونه څه دي او هم په عام ډول ولې یو سړی شاعرۍ ته مخه کوي؟

سل په سلو کې په خدای که به پوهېږم چې زما د شاعرۍ اساسي لاملونه به څه وي؟ هو دومره مې اورېدلي دي چې شاعري د خدای ورکړه ده. هغه د خوشال بابا خبره چې:

شېخ دې لمونځ روژه کړي زه به ډکې پیالې اخلم
هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه

که مورږ یو ګل په پام کې ونیسو چې څنګه وده کوي؟ څنګه راوټوکېږي، ځانګې، ځانګې وغځېږي، غوټۍ یې وسپړېږي او ګل

ګل شي؟ د دې عمليې لپاره تر ټولو د مخه د ګل تخم بايد وي. بيا په خپل وار سره مناسبه ځمکه، په مناسبه اندازه اوبه، شبنم، لمر، د ګل پالنه او څارنه او نور طبيعي عوامل په کار دي.

شاعري هم داسې درواخله، تر ټولو د مخه د شاعرۍ فطري تومنې لپاره شاعرانه جذبه، تخيل، شاعرانه فکر، سندريزه ژبه، شاعرانه پېښې، شاعرانه اتوموسفير، هنري منطق او رياضيت دا ټول په کار دي. شاعري په غم او ښادۍ کې زما ډېره خوږه ملګرې ده. شاعري د محروميتونو پر وړاندې يو ښکلی تسليت دی. له بل هر څه نه مې زيات له شاعرۍ سره زړه تړلی دی. لکه سيوری يوه بل پسې روان يو. کله دا مخکې زه ورپسې، کله زه مخکې دا راپسې. که د خپل ژوند شېبې د شاتو مچۍ وبولم، نو شاعري مې ملکه ده. زه فکر کوم چې د انسان په فطرت کې يوه داسې پټه غوټه ده چې هنرمندان يې په خپلو هنرونو کې پرانيزي. يا لږ تر لږه د پرانيستو رياضت يې جاري ساتي او تسلي پرې کوي. د نورو کارونو مينه وال يې په هغو کارونو کې د پرانيستو هڅه کوي چې له نور هر څه نه زيات يې زړونه ورسره تړلي دي.

هو، پاتې شوه ستا د همدې سوال بله برخه چې ويلې دې وو: ((په عام ډول ولې يو سړی شاعرۍ ته مخه کوي؟))

يون صيب که ګستاخي نه کېږي، زه ستا سوال داسې اړوم، چې په خاص ډول ولې يو سړی شاعرۍ طرف ته مخه کوي؟ يا شعر ولې د شاعر په زړه اخته شي؟ فکر کوم د دې برخې ځواب هم په پورتنيو خبرو کې شوی دی.

## شاعري د نورمال فکر زېږنده ده که د ټکان خوړلي؟

د دواړو، د نورمال فکر شاعري نورماله شاعري ده او د ټکان خوړلي فکر ټکان خوړلې. هو، يوه خبره شته هغه دا چې ټکان بايد روښانه شي چې ښکلی ټکان يې خوړلی دی او که بدرنګ، که فکر ښکلی ټکان خوړلی و، نو طبعاً انعکاس به يې ښکلی وي او که بدرنګ ټکان يې خوړلی و، نو هسې په اوتو بوتو به سر وي.

که يو مهين جام راوغورځي، نو يو مترنمه شرنګ به شي او که د خامو خاورو لوښی راوغورځي د ماتېدو اواز به يې نامترنم وي.

## د بې فکره هنري شعر او د فکري بې هنره يا بې تخيله شعر (نظم) په باب ستاسې نظر څه دی؟ کوم يو ستاسې د تائيد وړ دی او که نه د دواړو ترمنځ د فکري هنري شعر تائيد کوئ؟

په شعر او بل هر هنر کې اساسي ټکی ښکلا ده. په شعر کې چې هر څه راځي، بايد شعر شي او بايد ښکلا شي، که فکر وي، که تخيل وي، که ارمان وي او که پيغام وي. دا ټول بايد سره غاړه غړې شي او يوه ګډه مناسبه شعري ښکلا راوپنځوي.

هغه شاعر يا د شعر په نامه ليکنه چې هنر او تخيل ونه لري نه ورته شعر وايم او نه هم د شعر کيفيت او خوند ترې اخيستی شم. هو که يو شعر فکر هم نه لري او نورې ښکلاوې ولري خوښېږي مې او قبول مې دی. که بيا يو شعر د تخيل، جذبې، شاعرانه او سندريز انځورونو ترڅنګ فکر او پيغام هم ولري، بيا خو نو نور علی نور، بس پر

شیدو باندې چې هر څومره غوړې تویوې خوند یې زیاتېږي او له نعمت نه نعمت الله جوړېږي. په شعر کې تخیل جذبه او نورې هنري ښکلاوې داسې دي لکه د یوه ګل رنګ او وږمې او که بیا له همدې ګل نه ګل قند او د روغتیا درمان هم جوړېدی شول دا یې د فکر او پیغام برخه ده چې د ګل ارزښت یې نور هم زیات کړی دی. په شعر کې هم د نورو ښکلاوو ترڅنګ پیغام او فکر ښکلا ییز ذوق هغه وخت د منلو وړ دي چې د شعر پر مناسبه ښکلا باندې بې ځایه بار نه شي. فکر او پیغام باید په شعر کې داسې حل شي لکه په ګل کې د رنګ او خوشبو ترڅنګ د ګل قند او درمان جوړېدلو تومنه، یا لکه په خوږو کې مالګه.

## کینه د شعر په ټوکولو کې زیات رول لري که عاطفه او که دواړه؟

د شعر او بل هر هنر په تار وپود کې مینه، ښکلا او عاطفه غځېدلې په نظر راځي. دا چې انسان مینه کوي مانا دا چې کرکه هم کوي. که یو څوک له یوه څه سره مینه ولري د هغه څه (معشوق) له دښمن سره به خامخا کرکه لري. خو اصله خبره داده چې په هنري پنځونو کې کرکه هم باید په ښایست بدله شي او عاطفي ترڅنګه یو مناسب رنګ ځان ته غوره کړي. داسې نه شي لکه شال او شړۍ دې چې سره پیوند کړي وي. ځکه خو ویلای شم چې عاطفه او کرکه پر خپل خپل ځای په هنري پنځونو کې ځانګړی ارزښت لري. هنرمند تل له ښکلا سره مینه کوي او له بدرنګیو کرکه. خو مقصد دادی چې د مینې او کرکې له کش مکش نه چې کوم عمل منځته راځي هغه باید

جوړوونکی وي. یو شاعر په خپل شعر کې د یوې شل کلنې افغانې نجلۍ داسې انځور راوړی چې پر ټنډه یې شل مېخونه ټک وهل شوي دي. که دلته د شاعر عاطفه راپارېدلې نو د هغو لاسونو پر وړاندې یې کرکه هم راپارېدلې ده چې د نجلۍ پر تندي یې مېخونه ټک وهلي دي.

## د شاعر او د هغه د شعر ترمنځ روحي او اخلاقي اړیکې څنګه ارزوئ؟

ترډېره ځایه شعر او هنر د انسان د باطني او ظاهري کیفیاتو انځورول دي، تر یوه ځایه روحي کیفیت او اخلاق د شاعر پر شعر سیوری کوي، خو په شعر او هنر کې ښایست باید د سوي لاس په څېر وساتل شي. هغه د چا خبره چې د ښو غوښو ښه ښوروا وي. همداسې د ښکلیو رواني او اخلاقي کیفیاتو او ښکلي ضمیر انعکاس به په شعر کې هم ښکلی راځي. که دلته د اخلاقو په باب وغږېږو خبرې به ډېرې شي. همدومره وایم چې په بشري ټولنو کې اخلاقي معیارونه هم یو له بله سره توپیر لري. زه خو وایم چې شعر د ښایست د اظهار لپاره یوه صادقانه او صمیمانه غږ دی، چې په ښکلیو اروااو او ښکلیو زړونو کې سندریزه وده مومي.

داهم وایم چې که شاعر فنافي الشعر شي نو هنر به یې د نورو نیمګړتیاوو پرده پوښ شي او یا به لږ تر لږه له ډېرو بدیو واوړي. دا ځکه چې ښکلا او نېکي ډېر سره لرې نه دي.

## کوم شاعر د چاپېريال د ښکلا ښه انځورونه کولای شي؟

دا پوښتنه په کلي ډول دوه ځوابونه لرلای شي:

۱- هغه شاعر چې شاعرانه نبوغ ولري.

۲- چې د ښکلا خوند يې څکلی او ښکلې يې لمس کړې دي.

## ايا شاعر بايد ټول عمر مين وي؟

هو کې يو ن صيب، بختور به وي چې ټول عمر مين وي. خو مينه هم کله دا سې شي چې هر ځومره ورپسې ګرځې، په لاس به نه درځي، کله بيا د ښکار غوندې پر سرې ورپېښه شي. هغه د خوشال بابا خبره ده چې وايي:

خدايه ته په زړه کې اچوې دا مينې
چې په ښکار دې مبتلا کړم ته مې وينې

تاسې پوهېږئ چې شاعر يو عاطفي موجود دی او کله چې د ښکلو تر اغېزو لاندې راځي، نو د شعر غېږې ته پناه وړي او خپل ځان تسکينوي. که يو شاعر د عواطفو د توپاني حالت په پايله کې د شعر له غېږې پرته ناوړه ځښاک او څکاک ته پناه يوسي، نو دا به د ده پر شعر ناوړه اغېز ونه کړي؟ له هغه سره

## به يې وا ته‌ن زيات نه کړي او د خپل شعر د بې باورۍ په مانا به يې نه وي؟

د ماشوم لپاره مهربانه غېږه د مور غېږه ده او د شاعر لپاره ښکلې او مهربانه غېږه د شعر غېږه ده. بختور دی هغه شاعر چې تل يې د شعر په غېږ کې سر ايښی دی. د کندهاريانو په اصطلاح د مور شيدې دې يې شي. اوس به راشو دې نورو غېږو ته ستاسو په اصطلاح د ناوړه ښناک او څکاک غېږو ته. په دې هکله دومره ويلای شم چې ښه شعر له تصنع نه پاک وي. د ښناک او څکاک په غېږ کې د تصنع خوا ته لاره غځېدلې ده. دا غېږې دومره ډېر طبيعي سکون نه لري. ددې غېږو خوبونه مصنوعي دي. په طبيعي خوبونو کې الهامي خوبونه هم ليدلی شو. بيا هم زه قاطع حکم نه شم کولای چې هر ناروړدی به له روږدي ښه هنر وپنځوي. په يوه کتاب کې مې لوستي وو: ((چېرته چې ښه شعر شته شرابو ته حاجت نه شته.))

او يا که بيا څوک دې لنډۍ د ښناک خواته څکولي وي چې وايي:

ما د چلم نرۍ لوګی کړې
چې د جانان له لړمانه راتاوه شمه

نو زموږ توصيه ورته داده چې د شعر په غېږ کې دې سرونه کېږدي او لاهوتي للو ته دې غوږ غوږ شي.

## د شعر د انځورونو په باب ستاسې نظر څه دی؟ عيني انځورونه زيات وکارول شي که ذهني؟ ځينې

وايي چې عيني انځورونه د چاپېريال عكاسي كوي. لوستونكي او اورېدونكي ترې ژر خوند اخيستلای شي، خو ځيني نور فكر كوي چې له عيني انځورونو نه ژر خوند اخيستل كېږي او مانا يې ترلاسه كېږي. په شعر كې د ذهني انځورونو كارونه ضرور ده ځكه چې د لوستونكي د ذهني ځواک د ودې او په كار اچولو سبب كېږي او تر يوې تحليلي عمليې وروسته لوستونكی د خوند او مانا حد ته رسېږي. نو ددې لپاره چې شاعر د لوستونكي ذهني ځواک په كار اچولی وي، بايد ذهني انځورونو ته زياته پاملرنه وشي. تاسې د دواړو په هكله خپل نظر څرګند كړئ؟

د شعر انځورونه بايد ښكلي روښانه او طبيعي وي. كه ځای ځای پېچلي هم وي، بايد شاعرانه ښكلا او هنري منطق ولري. كه په شعر كې عيني انځورونه راغلي وي او كه ذهني شعريت به يې په دې كې وي چې د ذوق خاوند ترې ښكلا ييز كيفيت واخيستلای شي. كه د انځورونو لاره په مارپېچي ډول تاوه راتاوه هم وي، خو بايد سهي او سلامته دنګې ښكلا ته ورسېږي. دا لاره كه ډېره ګرانه او مشكله هم

وي، خو ښکلې باید وي. روښانه باید وي او د تصنع له غبار نه لرې باید وي.

یون صیب! تاسې لیکلي دي چې له عیني انځورونو ژر خوند اخیستل کېږي او له ذهني په ځنډ سره خوند اخیستل کېږي. زه خو وایم چې که چېرې انځورونه شاعرانه، مناسب او طبیعي وکارول شي که ذهني وي که عیني خوند به ترې ژر واخیستل شي. شعر باید له اورېدلو او لوستلو سره جوخت هم خوند او ښکلاییز کیفیت ولري او له پای ته رسېدو سره یې د یوه بل خوند پیدا کول هم کمال دی. د شعر هره مسره او بند د یوه تال د ټالۍ په څېر باید وي، چې له هرې ټالۍ نه سملاسي خوند واخلو. ښه شعر خو د ډول او اتڼ په څېر سملاسي هنګامه جوړوي، نه داسې چې ((اتڼ سوړ شو او موزی اوس تود شو.)) زما مطلب دادی چې په شعر کې هر ډول انځورونه وي، باید شاعرانه وي، شاعر چې په هره لار ځي، باید د ښکلا مکې ته ځان ورسوي، خو شته ډېر داسې ښاغلي چې د مکې په نیت راوتي وي، لاره ترې ورکه شي او ترکستان ته ورسېږي.

## په اوسني وخت کې پښتو شاعري او په ټولیز ډول ادبي بهیر ته هیله من یې که نهیلی؟

نهیلي ګناه ده. خدای شته ډېر هیله من یم، دا زړه مې داسې راته وایي چې د ډېرې سترې ښکلا د پنځونې وخت رارسېدلی دی.

## (له نرګسه تر نرګسه) په نوم ستا د لنډو کیسو یوه ټولګه خپره شوې ده. د لوستونکو د ارزونې له مخې

**د لنډو کیسو په اندول ستاسې شاعري لوړه ارزول شوې، تاسې دا خبره څنګه ارزوئ؟**

له لوستونکیو نه دنیا دنیا مننه چې زما شعر او نثر یې دواړه لوستي. نه پوهېږم چې کومې لېونۍ مینې له شعر او نثر نه معشوقه راته جوړه کړې ده. معشوقه یوه ده، خو خبره په لباس کې ده. دا چې دا معشوقه د شعر په رنګینو جامو کې ښه ښکاري خدای دې وکړي چې د نثر په ساده جامو کې یې هم ښه وښکاروم.

**ستاسې په نثري لیکنو ان په ځینو سریزو او کره کتنو کې د لیکنې ژبه هنري او له تخیله ډکه برېښي، په پوهنیزو او تحلیلي لیکنو کې دې ډول ژبې ته اړتیا شته؟**

ما تل پر شعر او نورو هنري مسایلو یو څه لیکنې کړې دي. پر شعر باندې لیکنې باید د شعر سکنۍ خویندې وي. خربوزه خربوزې ته ګوري رنګ اخلي. لیکوال باید له موضوع سره برابره ژبه او لهجه وکاروي، که د علمي او تخنیکي مسایلو په هکله لیکنه وي، نو ژبه باید ساده او علمي وي. که د هنري مسایلو په هکله لیکنه وي نو ژبه باید یو څه هنري وي. د غلبېل سیوری سوری سوری وي. د شعر او هنر په هکله خبرې هم باید شعر او هنر ته ورته وي.

**زموږ په ټولنه کې ولې د نثر په اندول شعر (نظم) ته زیاته پاملرنه کېږي؟**

پښتو د ځپو او سېلابونو ژبه ده او په اسانۍ سره د موسيقۍ او ترنم زړي په کې زرغونېدی شي. ډېر ښه مثال يې پښتو ټپه ده. د پښتو متلونه هم تر ډېره حده موزون دي. د اتڼ نارې، د ماشوم للو للو، د کيسو او نکلونو غاړې، حتی ځينې کيسې (چيستانونه) موزنې راغلې دي. مورږ چې ماشومان وو، نو موزونې کيسې به مو يو بل ته اورولې او د مقابل طرف له بې ځوابۍ به مو خوند اخيست. د سېلاب لپاره يو يو موزونه کيسې وه چې له غورځنګه ډک وزن لري:

((له بره بابا راغی بابا تل وهي ډولونه)).

همداسې ويرنې او حماسې در واخله. يانې ټول د کار شيان په پښتو کې موزون راغلي دي. ځکه خو شعر ته تر نثر زياته پاملرنه شوې ده. که د پښتو فوکلوريکو افسانو او نکلونو ته پام وکړو په منځ منځ کې يې موزونې نارې ويل کېږي. دا نارې په هره برخه کې ډېرې ښکلې راغلې دي.

## تر او سه پورې (وزن) د شعري فورمونو ان ازاد شعري فورم يو اساسي توکی ګڼل کېږي، تاسې د منثور شعر او ددې نومونې په باب څه نظر لرئ؟

په دې هکله به درته لنډې خبرې وکړم:

منثور شعر هغه معشوقه ده چې خپل مطلب په خبرو کې بيانوي. موزون شعر هغه معشوقه ده چې خپل مطلب په سندره کې بيانوي او له ښکلې سُر او تال سره مهينه نڅا هم کوي. په شعر کې وزن د نورو

ښکلا وو ترځنګ یوه ښکلا ده. که شعر یو باز وبولو نو ښکې یې نورې شعري ښکلاوې دي. همدا رنګه وزن هم د دې باز یوه ښکه ده. که د باز یوه ښکه هم ماته وي خریدار ورته ګوته نیسي. زه په خپل وار منثور شعر ته هم شعر وایم خو چې له ځینو شعري ښکلا وو څخه برخمن وي.

## ځینې په دې نظر دي چې شاعر باید په شاعرۍ کې یو سپېڅلی معشوق ولري چې له هغه سره مینه ولري، ستاسې معشوق څه شی دی؟

شاعر او بل هر هنرمند باید له خپل هنر سره د عبادت تر سرحده مینه ولري. بې له مینې یو هنر هم هنر کېدی نه شي. له شعر او هنر سره دومره زړه تړل په کار دي لکه یو ژوندی یې چې د ژوند کولو له ارمان سره لري. هر ارمان چې ترسره شي ډېر عادي ښکاري. خو شعر او هنر هغه ښکلي ارمانونه دي چې له ترسره کېدو سره سره ښکلي پاتې کېږي. دوی هېڅکله د نورو ارمانونو په څېر د عادي کېدو درجې ته نه راټیټېږي. زما په نظر شعر د هغې سترې ښکلا د یو څو تصویرونو د حضور هنداره ده. په شعر کې د یوې نه پیدا کېدونکې ورکې د پښو خوړه ښکالو اوربدل کېږي. ستاسې د پوښتنې د دویمې برخې په باره کې باید ووایم چې: زما ایډیال او معشوقه یوه ښکلې او ورکه شاعره ده چې زه یې تل په لټه کې یم، خو په انساني څېرو کې مې لا نه ده لیدلې. یا د شمس تبریزي په قول: د هغې همزولې ښاپېرۍ په لټه چې له شاعرانو سره له ازله همزولې راځي.

## تر (چنار خبرې کوي) وروسته دې نوې پنځونې څومره دي؟

يون صيب ! که په څومره والي يې وو ايم ډېرې دي، خو خبره داده چې په ډېرو لږو مې زړه اوبه څښلای شي. که د غزلونو په هکله وو ايم زه فکر کوم، ډېر لږ غزل به مې داسې وي چې د چنار خبرې کوي د غزلونو سيال يې وبولم. هو يو څو اوږدې منظومې مې ليکلې دي چې يو وړوکی کتابګی ترې برابرېږي. خدای شته ډېر ورته زړه نا زړه يم او وېرېږم چې هسې نه له (چنار خبرې کوي) نه ډېرې رالوېدلې نه وي. ځينې دوستان يې د خپرولو ډاډ راکوي. په هر صورت که خير و ان شاء الله په دې وختونو کې به يې خپرې کړم.

که تر چاپ وروسته پرې ډاډمن نه شوم، نو اضطراب خو رانه چا وړی نه دی. ګوندې دا اضطراب مې په راتلونکو پنځونو کې برکت او ښايست واچوي.

## کله چې يو شاعر يا هنرمند اوج ته ورسېږي. نو بېرته د نزول خواته روان شي. ستاسې په نظر ستاسې شاعري اوس اوج ته رسېدلې، يانې تاسې خپل زړه او اند تش کړی او که نه دواړه د خوځون په حال کې دي او له ناويلو خبرو ډک دي؟

شعر او نور انساني هنرونه هېڅکله هم اوج ته نه شي رسېدی. دا منم چې شاعران او هنرمندان په خپلو هنرونو کې تل په يوه حال نه

وي. تېټ و پاس په کې خامخا راځي. ځینې د ځوانۍ په شېبو کې ښه شعر تخلیق کړي خو وروسته ترې خرابه شي. ځینې په اول سر کې ښه نه وي ورو ورو پسې ښه شي. ځینې په اول کې هم ښه وي او تر پایه ښه پاتې شي. ځینې نه په اول کې ښه وي نه په منځ کې او نه په پای کې. کله کله شاعرانه پېښې او شاعرانه اتومو سفیر هم پر شاعر اغېز کوي، د نویو او ښکلیو پنځونو دروازې ورته پرانیزي. په نړۍ کې د داسې شاعرانو او هنرمندانو مثالونه شته چې تر شپږویشت کلنۍ، شپږ دېرش کلنۍ او څلوېښت کلنۍ یې ژوند کړی او شهکارونه یې پنځولي دي. ځینې بیا شته چې د ژوند په وروستۍ برخه کې یې شهکارونه پنځولي دي. د مولوي جلال الدین بلخي په هکله ویل کېږي چې دی عادي ملا او تر اته دېرش کلنۍ پورې یې طالبانو ته درس ورکاوه، ناڅاپه شمس تبریزي ورباندې پېښ شو او د مولانا په زړه کې یې د مستانه شعر سوز و ګداز واچاوه. نن مولانا په نړۍ کې له لویو شاعرانو څخه یو دی.

د خپل ځان په هکله یوه خبره په ډېرې عاجزۍ خو په دعوې سره کوم هغه دا چې د ښو شعرونو د لوستلو یو لېونی مینه وال یم. پاتې شو خپل شعر مې، له خپلو ویل شویو شعرونو نه په خدای که دومره ډېر راضي یم. په زړه کې مې ډېر نا ویل شوي شعرونه ګرځي. که د لوی خدای رضا وه او دا نا ویل شوي شعرونه یې راباندې ولورول نو ایله به مې روح په ارام شي.

## په ادبي نړۍ کې دې کومه خوږه یا ترخه خاطره په زړه ده؟

یون صیب ! په ادبي نړۍ کې مې زښتې زیاتې خوږې او ترخې خاطرې په یاد دي. پر ګلپاڼو شبنم څومره ښکلی ښکاري؟ له ښکلیو سره موسکا څومره ښکلې ښکاري. همداسې خاطرات دي چې د شاعر او هنرمند زړه ته یوه دنیا ښکلا راوړي. د شاعر او هنرمند خاطرات د ده په راتلونکو هنري پنځونو کې غځېږي او را ژوندۍ کېږي. که پر خپلو خاطراتو لیکنه وکړم، کېدی شي خبره له کتاب نه هم پسې واوړي. دلته به صرف دوه وړې خاطرې سره غوټه کړم، چې کېدی شي هم ترخه ولري او هم خواږه:

څو کاله وړاندې مې یو چاته زښت زیات عقیدت درلود یو وخت د همدې عقیدت وړ بنیادم زما زړه مات کړ. ډېره موده ډېر وکړېدم. ومې نه کړای شول چې همدغه درد په شعر کې راونغاړم، څه موده وروسته مې کلی را په یاد شو ماشومتوب مې را په یاد شو او د کلي د ګودر په خوا کې هغه چنار رایاد شو، چې موږ به یې تر څانګو لاندې پر توره تخته الف و ب لوستل. زما په زړه کې یوه نغمه په غږېدو غوندې وه په دې وخت کې مې د ((چنار خبرې کوي)) منظومه ولیکله.

څو ورځې وروسته په اردو ساینس بورډ کې د افغان ادبي بهیر لومړنۍ غونډه وه، غونډه او مشاعره روانه وه، له ما سره چنار خبرې کوي شعر و. خدای شته زه چې هر نوی شعر اوروم وېرېږم، ځکه په پښتو کې به ازاد شعرونه ډېر لږ داسې وي چې له پښتو غزل سره سیالي وکړي. باور وکړئ له پسرلي صیب نه لا ډېر وېرېدم ځکه چې د پسرلي صیب ذوق ډېر لوړ دی او د شعر ښکلا ییز کیفیت ته ډېر ژر

رسېږي، خو په هر صورت کله چې زما د شعر وار راغی نو ((چنار خبرې کوي)) مې په ډار ډار ولوست.

مشاعره پای ته ورسېده پسرلی صیب ستېج ته ولاړ او ویې ویل چې تاسې کینئ زه یو څو خبرې کوم. موږ ټول غوږ غوږ شو، پسرلي صیب خپلې خبرې داسې پیل کړې:

((زه نه سلطان محمود غزنوي یم او نه کوم بل پاچا، ګنې کاروان به مې د ده د شعر له وجې په طلاوو نمانځلی وای خو زه کاروان ته یو قلم ډالۍ کوم، پسرلي صیب ماته په ډېره مینه قلم راکړ. د پسرلي صیب د مینې او لورېینې هغه کیفیت مې اوس هم په زړه کې پټ ساتلی دی او کله کله ځان رایادوي.

## د هېواد لپاره دې په تخیل کې کومې هیلې روزلې دي؟

د یوه داسې صوفیانه نظام په تمه یمه چې هر دویم تن یې منصور وي او دار هېڅ نه لري.

# عبد الباري جهاني له ((ورکې مېنې)) تر ((شیش محله))

عبد الباري جهاني د هېواد نوماند، غښتلی او پیاوړی شاعر دی.

د جهاني شعر له دوو لسیزو راهیسې زموږ د خلکو په



زړونو او ذهنونو کې لکه د یوې خوږې ورېمې په څېر چلېږي او هغو ته ښکلا، ارام او تودوخه ببښي.

دده په شعر کې، مستي، مایوسي، بغاوت، درد، سوز، اوښکې، مي، بزم او رزم، اهونه او ګلونه ټول ځلېدلي او ځلېږي. ((ورکه مېنه)) د جهاني د شعرونو لومړنۍ چاپي ټولګه ده، ((پایکوب)) یې د شعرونو دویم چاپي

غونډ دی او ((شیش محل)) یې د شعرونو او سنی شعري غونډ دی چې د چاپېدو په درشل کې دی.
دا چې شاعر به په خپله ((ورکه مېنه)) کې ارام، سوزمن او ډاډمن ښکاري او که په ((شیش محل)) کې او یا دا چې د کومې شعري جونګړې شعرونو به یې د خپل سوي لوي هېواد د اوښکو او اوسېلیو ښکلې انځور ګري کړې وي دا به د ((شیش محل)) تر چاپ او پرتلنې وروسته څرګندېږي، خو د شاعر هغې ګړنۍ مرکې ته چې ما (یون) ورسره (د طالبانو د واکمنۍ پرمهال) په پېښور کې کړې وه او پورتنی عبارت هم پر همغه وخت لیکل شوی و، ستاسې پام را اړوو. دا یوه ګړنۍ مرکه ده چې له راډیو کسټ څخه د کاغذ پر مخ پلې شوې ده او همغه مهال د هیلې مجلې د ۱۳۷۷ل کال په لومړۍ ګڼه کې خپره شوې ده.

تر هر څه لومړی که د خپل شعري ژوند د پیل په اړه خبرې وکړې خوښ به شو؟

د شعر د پیل په باب باید ووایم چې چندان د پیل وخت یې ځکه راته معلوم نه دی چې له ډېر کوچنیوالي مې پر شعر لیکلو پیل کړی دی، تقریباً له اووم ټولګي څخه مې شعر پیل کړ، دا چې شعري کیفیت یې څنګه و او اوس د شعري ارزښتونو له مخې ورته شعر ویلی شو او که نه؟ دا نو ښه خبره ده. څرنګه چې هېڅ مشوق مې په کور او چاپېریال کې نه درلود، نو څوک را څخه خبر هم نه شول، چې زه لا شعر لیکم، نو په شعر ویلو مې پیل وکړ، تقریباً یوه کتابچه مې له شعرونو ډکه کړه، هغه بیا را څخه پاتې شول، اوس مې په لاس کې نه شته. په پوهنځي کې مې د ملګرو په زیاته هڅونه بیا د شعر نړۍ ته مخه کړه، شعرونه مې لیکل، خو جمع کول مې نه، لنډه دا چې هغه وخت چې زه متوجه شوی یم او یا متوجه کړای شوی یم چې شعر لیکلی شم او شعر کې مې یو څه شته نو هغه مې د پوهنځي دوران دی. تر دې وروسته باید دا حقیقت ووایم چې زما د شعر په تشویق، روزنه، هڅونه او پالنه کې په سلو کې پنځوس زما خپل فطري استعداد او زما کورنۍ رول درلود، نو په سلو کې پنځوس اغېز د محمد صدیق روهي و، زه هغه شاعرۍ ته تشویق کړی یم، سیمینارونو او غونډو ته یې بللی یم. هغه زه په دې وپوهولم چې زه شعر لیکلی شم او د شعر استعداد لرم.

## د یو شخص شاعر کېدل یا د فردي او یا هم د ټولنیز درد زېږنده ګڼل کېږي، ستاسې د شاعرۍ علت څه دی؟

ما له کوچنيوالي څخه له موسيقۍ سره مينه لرله. زما د شاعرۍ يو اساسي علت په کوچنيوالي کې همدا موسيقي وه. زه له موسيقۍ سره سخته مينه لرم او اوس هم دا مينه لرم، په کندهار کې دا سې دود و چې چا به کوم غزل يا شعر ليکلی و، هغه به يې پټ په کتابچه کې ځان سره ليکلی و، بل چاته به يې نه ورکاوه، که ورکاوه يې هم نو غلط نقل، دغه بيتونه چې د کندهار شاعران يې ليکي، زه هم کولای شم سره پيوند کړم، نو ما به د هغو پر طرز باندې شعر جوړ کړ او بيا به مې خپله وايه او يا به مې د کوڅو هلکانو ته ورکول، هغو به ځان سره په ترنم کې ويل، خو که شعر د شعر په مانا او يا هم د يوې اجتماع لپاره وقف شوی وي او يا شعر د خلکو لپاره وي چې زه خپله هم ځان همدا سې يو ژمن شاعر بولم او خلک بايد زما په شعر پوه شي، نو هغه وخت د پوهنتون وخت دی. خيانت، رشوت، ظلم، فساد، شاته پاتې والی، مفاهيم په مظاهرو، جريدو، مجلسونو، مجلو او هر ځای کې ياديدل، نو طبيعي خبره ده چې شعرونه هم دغه مسير ته سوق شوي دي. نو زما شعر هم له دغه مسير څخه مستثنی کېدی نه شوای، نو ما هم په دغه ترځ کې شعرونه ويل او د هغه وخت استبداد ته به مې ګوته نيوله، نو انګېزه به يې د هغه وخت ټولنيزې نيمګړتياوې وي. وروسته خو بيا تاسې ته معلومه ده چې زما شعر د وخت په بېلابېلو پړاوونو کې بېلابېل رنګونه اخيستي دي. هر وخت چې زه شعرونه ليکم نو ملګرو ته وايم چې له ما نه مه خپه کېږئ، زما شعرونه د پردېسۍ رنګ لري او که اوس د پردېسۍ رنګ ونه لري نو د څه شي رنګ به ولري؟

هغه ما یا تشویقوي او یا د شعر په اصطلاح اغېزمنوي، نو هر وخت که زما د شعر چینه وچېدله یو علت به یې دا وي چې زه د شعر لپاره هېڅ ډول چاپېریال نه لرم.

## د شعر د انځورونو په باب ستاسې نظر څه دی؟ په شعر کې باید کوم ډول انځورونه زیات وي، عیني، ذهني؟ که د دې دواړو انډول وي؟

زما په نظر دې که د انډول خبره چندان مطرح کېدی نه شي، فکر کوم دا د شاعر خپل خیال دی، کله کله شاعر په خپل خیال کې دومره ډوب شي چې د واقعیتونو له پولو ووځي، د تخیل دنیا ته ځي او هغه دنیا بیا د ده په الفاظو او ترکیباتو پورې اړه لري. کله کله داسې الفاظ او ترکیبونه استعمال کړي چې هغه د تخیل نړۍ دومره درته رانږدې کړي چې دده خپله فکر نه وي چې دومره به یې ښه مجسمه کړی شم. نو په خپله ځینې مجسمه شي او کله کله شاعر بیا په خپله دا تصمیم نیولی وي چې یوه منظره، یوه تابلو، د یو غریب سړي کور، استبداد او یا هر شی چې وي، هغه ته د واقعیت جامه واغوندي، تصویر او انځور یې کړي. زه په دې مسئله کې شاعر مختار بولم، یوازنی شی چې زه فکر کوم کله کله د انځور مخه نیسي هغه د غزل چوکاټ دی، د غزل په چوکاټ کې زیاتره ښکلي ترکیبونه او احساسات ښه رسېدلی شي، نسبت دې ته چې انځور دې ورسېږي، انځور د خپل ځان لپاره لږ شان پراخه چوکاټ ته ضرورت لري، چې هغه ازاد نظمونه او یا د اوس په اصطلاح چې دا زما لپاره

نوې ده او (پېیلي نظمونه) ورته وايي، هغه د انځور د ترسیم لپاره ډېره زمینه لري.

## ځینې کسان یا شاعران د هنري او ژور تخیلي شعر په نامه تکلفي او تصنعي نظمونه وړاندې کوي او ان کېدی شي لوستونکي هم ذهناً تېر باسي، په دې باب ستاسې نظر څه دی؟

په دې باب زه وايم چې کله شاعر شعر لیکي باید خپل لوستونکي په پام کې ونیسي، چې دغه شعر چاته لیکم؟ که ما ته څوک دغسې یو شعر وړاندې کړي، زه پرې پوهېږم او که نه؟ زه سره له دې چې زه ځان شاعر نه بولم، خو زه چې څه لیکم، زما تعهد له خلکو سره دادی چې زما پر ژبه باید خلک پوه شي، البته سل په سلو کې د خلکو پوهېدل امکان نه لري، شعر څوک دومره راکښته کولی نه شي چې پر هغه باندې ټول بېسواده خلک پوه شي، شعر د یو ډول خلکو لپاره ویل کېږي چې شعر وربانديې درک کړي، نو که چېرې داسې شعرونه ولیکل شي چې دا ډول خلک دې هم پرې پوه نه شي، نو زه خو شاعر ته فرمایش ورکولای نه شم چې دغه راز شعرونه ولیکي، خو زه خپله ورسره یو څه مخالف یم.

## د پښتو او سني شعر په باب هیله من ښکارې که نهیلی؟

نه یوازې دا چې هیله من یم، بلکې زما تر توقع ښخي لوړ دی، خصوصاً د ځوانو شاعرانو شعرونه زما تر توقع ډېر لوړ دي. باور وکړئ چې ماته لږ رخه هم راشي، چې بیا وګورم اکثره ځوان شاعران زما د زامنو په سن دي، ماته داسې ښکاري لکه زما زامنو چې شعر ویلی وي او یا لکه ما چې په خپله ویلی وي. پښتو زه خپل مال بولم، د پرمختګ په باب یې که له ما څخه څوک پوښتنه وکړي نو زه وایم چې د پښتو شعر او نثر هېڅوخت د نن ورځې په شان پرمختګ نه و کړی، زه پوهېږم چې په دې حالت هم دا شعرونه نه پاتې کېږي، په ډېر سرعت باندې دغه حالت ته راغلي او دغه حالت چې زه ګورم نو په هره برخه کې یې متوازن پرمختګ او وده کړې ده، نو زه په سلو کې زر هیله من یم.

**ستاسې: ((دا د مستو پسرلی دی)) خصوصاً ((زموږ کښتۍ یې ډوبوله خپل دریاب یې توپاني شو)) شعر ډېر عام مقبولیت او منښت پیدا کړی دی، ستاسې په شعرونو کې نور داسې شعرونه ستاسې په نظر کوم دي چې دې پوړۍ ته رسېدلي وي؟**

زه د دې شعر په مقبولیت نه یم خبر، دا مې ستاسې له خولې واورېده، کېدی شي دا د لوستونکو او اورېدونکو ځاني نظر وي، چې زما د دغه شعر په باب یې لري، تاسې ته مې مخکې هم وویل

کله چې زه شعر لیکم، نو ورته ژاړم، نو ما یو شعر لیکلی دی ((ځوانه دا څوک یې چې ګولۍ اوروې، - د خپل نیکه او د ابا پر کلي)) فکر کوم دا شعر هم ډېرو خلکو اوریدلی او هلته په امریکا کې یې ډېر خلک خوښوي او د کندهار خلک معمولاً ((زما کندهاره د زمرو وطنه!)) دا هغه وخت ویل شوی دی چې روسان کندهار ته راغلل او کندهار کې قیام شروع شو، څلور پینځه ورځې وروسته دا شعر لیکلی شوی دی، د کندهار خلک دغه شعر ډېر خوښوي، دغه دوه شعرونه زه یادولی شم.

## له خپل اصلي چاپېریال څخه د شاعر لرې کېدل د هغه پر شعري ژوند څه اغېز لري؟

د بل چا پر ژوند څه نه شم ویلی خو زما پر شعري ژوند یې پوره اندازه اغېز کړی، زما شعر یې د مایوسۍ خواته کش کړی دی، زه ځینو شاعرانو لکه په دې پېښور کې ځینو شاعرانو ته حیران یم، ځکه چې دوی په شعر کې ډېره ښه مستي لري، په اصطلاح نغمې یې ناځي، بیتونه یې ناځي، خو زما په شعر کې له کلو کلو راهیسې مستي نه شته، نڅا پکې نه شته، زما هر شعر چې در واخلې، غزل وي که ازاد، ما په دې نیت نه دی لیکلی چې هغه دې د پردېسۍ رنګ ولري، مګر زه چې هر څومره ځان ترې ګوښه کوم، نه کېږي یو بیت یا نیم غزل یا بېټول شعر خامخا دغسې وي چې هغه دې د پردېسۍ رنګ لري. له خپل محیط لرې کېدلو زما پر شعر دغه تاثیر کړی چې د مایوسۍ خواته یې کش کړی دی. زه کله کله ېېرېږم چې هغه ستاسې په اصطلاح د شعر چینه مې وچه نه شي.

**تاسې نړيوالـه شاعرۍ مطالعه کوئ، په دې بـاب پـه ټوليز ډول څه فکر کوئ چې کوم مسايل په کې زيـات مطرح دي او کوم لور ته روانه ده؟**

تاسې خپله د يو شاعر او محقق په توګه دې ته اشاره وکړه چې د شاعر شعر له خپل چاپېريال څخه متاثر وي، د نورې نړۍ خصوصاً د امريکا يا د غرب ادبيات چې مونږ ته رارسېږي او لولو يې، د هغو شاعري هم له خپل محيط څخه متاثره ده، هغه انعکاسات چې تاسې يې په پښتو شعر کې وينئ دا تمه مه کوئ چې هغه دې د غـرب پـه ادبيـاتو کـې ووينئ، البتـه د غـرب ادبيـات ځانتـه خپلـه خوږلني او شـريني لـري، خپـل ترسـيمونه او انځورونـه لـري او شـرقي ادبيـات ځانتـه جلا رنګ لـري او دا رنـګ يـې لـه ډېره وخت څخه جلا و. کـه پښتو ادبيات په پام کې ونيسو، نو د پښتو اوسني ادبيات د داسې خاصو شـرايطو محصـول دي چـې هغـه د هېچـا لـه شـرايطو سـره د مقايسې وړ نه دي. د غرب شرايط او د پښتو شرايط بېخي سره بېل دي، نو شعر يې هم سره بېل دی.

**په پښتو شاعرۍ کې ستاسې په نظر داسې شعرونه شته چې هغه د نړۍ په نورو ژبو واړول شي او هغـوی ترې خوند واخلي؟**

غربيان له شرقي شاعرۍ سره هېڅ وخت نابلده نه وو، لـه فارسي شاعرۍ سره بلد دي، هلته يې پر دې شاعرۍ ډاکترۍ اخيستې دي،

دغه راز له پښتو ادبياتو سره، د خوشال، رحمان بابا، هجري، کاظم خان شيدا، له شاعرۍ او ادبياتو سره خلک ښېخي ډېر بلد وو، پر هغوی يې ډاکټرۍ اخيستي، خصوصاً په روسيه او انګلستان کې د پښتو ادبياتو په باب ډېرې څېړنې شوې دي او اوس هم خلک ورسره بلد دي، خو که چېرې له ما څخه د پښتو د اوسنۍ شاعرۍ په باب پوښتنه کوې، نو زموږ شاعرۍ په هېڅ صورت شاته پاتې نه ده او که چېرې ترجمه شي، نو زه پر دې يقين لرم چې هلته به هم خلک ترې ښه خوند واخلي او هم به سبا ورځ پرې ماسترۍ واخلي.

## زيات تخنيکي او ان فزيکي کار د شاعر پر شعري زېږېدنې څه اغېز لري؟

د بل چا د ژوند په باب څه نه شم ويلی، خو زه يې ډېر متاثر کړی يم، ډېر يې له کاره ويستلی او ستړی کړی يم، ځکه چې له سهاره تر ماښامه يا ژباړه کوم يا ميک ته ناست يم، چې دا دواړه زما کارونه نه وو، په افغانستان کې زما ډېر ښه او خوږ محيط پښتو ټولنه او د علومو اکاډمۍ وه. ما د ژوند خوږې ورځې هلته تېرې کړي، ځکه چې امضا به مې وکړه، نو بيا به مې هغه کار کاوه چې زما زړه غوښته او پر هغه به حکومت ماته معاش راکاوه. ما به کله کله ملګرو سره ټوکې کولې چې دا څومره عادل حکومت دی چې موږ خپل کتاب لولو او دوی موږ ته پيسې راکوي. هغه کار چې د سړي له مسلک سره جوړ وي نو بيا لويه نېکمرغي ده، خو اوس مې په اوونۍ کې پينځه ورځې ټولې په ډېر غير مسلکي کار باندې چې زه ورسره هېڅ ډول علاقه نه لرم، مصرفېږي او دا يوازې د ډوډۍ د برابرولو لپاره

دي. يوازې په کور کې شعر ليکم او تاريخ مطالعه کوم چې هغه بيا زما له کار سره اړيکې نه لري. زه فکر کوم ورځينې چارې سړی ډېر متاثر کوي.

**سره له دې چې تاسې په نسبتاً خوشاله او سوکاله ټولنه کې اوسېږئ او ظاهري صورت مو هم ګلاب رنګه معلومېږي، خو پر شعرونو مو يو ډول نهيلۍ سيوری کوي، دا له مهاجرت پرته کوم بل علت هم لري؟**

له مهاجرت پرته بل عامل نه لري، زه د خدای(ج) په فضل په کورني ژوند کې له خپلې مېرمنې او اولادونو سره پوره صميمي ژوند لرم، يوازينی علت يې له هېواده لرېوالی دی. زما هېواد يادېږي، ما همېشه خلکو ته ويلي، چې زما لپاره په دنيا کې جومات، جنت او کعبه اول کندهار دی او دويم پېښور. نه پوهېږم چې دغه دوه ښارونه مې ولې په نړۍ کې ډېر خوښ دي. زه په دې دوو ښارونو پسې هر وخت خپه کېږم، خاصتاً چې د ځوانو شاعرانو شعرونه لولم، زړه مې غواړي چې هره جمعه د دوی په منځ کې ناست وای، سړی يو شعر دوه شعره تصنعي ويلای شي، ټول نه شي ويلای، نو ځکه زما په شعرونو کې د نهيلۍ رنګ دی.

**ستاسې په نظر د يو ښه او اوچت شعر ځانګړنې کومې دي؟**

د شعر کمال د شعر موسیقیت او د شعر شعریت دی، سړی چې خپله شعر وګوري بیا پرې قضاوت کولای شي، چې قوي دی، که ضعیف، خو یوازې دا وایم چې شعر باید دومره قوي نه شي چې د هغو خلکو له ذهني سطحې هم اوچت شي چې همېشه شعر لولي. د ښه شعر بیا چندان تعریف ځکه نه شم کولای چې د هر چا په نظر بېل تعریف لري.

## په تېرو شلو کلونو کې پښتو شعر د څومره والي او څرنګوالي له پلوه څنګه ارزوئ؟

پښتو شعر ته اوس زیاتې هیلې شته، له پخوا څخه یې زیات توپیر کړی دی، که روسانو افغانستان وران کړ، خو د دې ورانۍ ګټه بیا ادبیاتو ته ورسېده. یو وخت چا داسې تصور نه کاوه چې پښتو کې به په دومره زیات شمېر ښایسته شعرونه وویل شي. په پښتو کې پخوا ښه شعرونه موجود وو، خو په اوسني مقدار نه وو، اوس چې هر غزل او یا ازاد شعر را واخلې تر هغه بل ښه خوند کوي.

## د شاعرۍ ترڅنګ دې نور کوم اثار لیکلي او یا هم تر لاس لاندې دي؟

اوس خو مې یو تاریخ لیکلی چې په دې نږدې وختونو کې باید چاپ شي، دا کتاب ((د هرات پښتانه او ستره لوبه)) نومېږي. په دې اثر کې د ایران او برتانیې ترمنځ رقابت څېړل شوی دی، ایران غوښتل د روسیې په مرسته هرات د ځان کړي او برتانیه غوښتل چې هرات د هغوی لاسته ور شي، دا په بېلا بېلو پړاوونو کې د هرات

تاریخ دی. نوري پروژې مې دادي: پښتانه په ۱۸مه پېړۍ کې، پښتانه په ۱۹مه پېړۍ کې او پښتانه په ۲۰مه پېړۍ کې. دا هر یو ځانته جلا جلا اثر دی.

## د پښتو په اوسنۍ شاعرۍ کې دې د چا شعرونه ډېر خوښ دي؟

شاعران زما په خیال داسې دي لکه ګلان، هر یو ځانته بېل رنګ او بېل بوی لري او بېل ښایست، زما لپاره هر شاعر جلا جلا ګل دی، جلا رنګ لري او جلا خوند، ما ته د هر شاعر کلام خصوصاً د ځوانو شاعرانو شعرونه ډېر خوند راکوي.

## د موسیقۍ او شعر ترمنځ اړیکي څنګه څېړې؟

موسیقي شعر د ټولو خصوصاً د بېسوادو خلکو غوږو ته رسوي، هغوی کتابونه نه شي لوستلای، نو که یو سندرغاړی یو شعر په خپل اواز کې د خلکو غوږو ته ورسوي، نو قوت یې څو چنده زیاتېږي، خو که چېرې شعر موسیقۍ ته وقف شي، نو په دغه وخت کې د ابتذال خوا ته ځي.

**وروستۍ پوښتنه مې سیاسي غونډې ده: تاسې د یو مهم هېواد په سیاسي- تبلیغاتي دستګاه کې کار کوئ، دلته داسې اټکل کېږي چې تاسې به له حالاتو ژر خبرېږئ ! ایا په نږدې راتلونکي کې داسې هیله**

## شته چې د افغانستان دا غميزه نوره پای ته ورسېږي؟

هېڅ ولس له داسې ستونزې سره نه دی مخامخ شوی، چې سړی د هغې ستونزې حل ناممکن وبولي، افغانستان پخوا هم له سختو ستونزو سره مخامخ شوی، يو وخت په افغانستان کې اتيا کاله پرله پسې ګډوډي راغلې، خو افغانستان د هغه اغتشاش له دورې څخه هم ووته، سړی ورته هيله کوی شي، دا چې څه وخت دا ستونزه حلېږي، نو سړی د وخت دقيق اټکل نه شي کولای، خو که څوک له ما څخه وپوښتي چې دا ستونزه به حل شي، نو ورته وبه وايم چې زه په دې ايمان لرم چې حل کېږي.

*ترخگو چیگ په افغانستان کیگ قانون حاکم نه شي*

# د مطبوعاتو ازادي ممکنه نه ده

شگاغلی حاجي سیدداود د هیگواد له أیگرو تکؤه ژورنالیگستانو او د ژورنالیگزم له لویو خدمتکگارانو خگخه دی، ده د جهاد په کلونو کیگ په أیگرو سختو حالاتو کیگ افغان نشراتي مرکز فعال کؤ او له دیگ لاریگ ییگ تگولیگ نؤة ته د افغانانو اوازونه او فریادونه ورسول، دغه راز ییگ په سلگکگونو ژورنالیگستان ورزل او تگولنیگ ته ییگ وؤاندیگ کؤل، حاجي سیدداود پر ژورنالیگستکو خدمتونو سربیگره هیگواد ته یو لؤ نور یاد وؤ تگولنیز خدمتونه هم وکؤل او په سیاسي



أکگر کیگ ییگ هم د ملي ارمانونو د بري لپاره أیگریگ هلیگ حگلیگ او ستاینیگ وؤ مبارزه وکؤه، دی اوس هم خپلو دیگ أول ملي او فرهنکگي هخگو او فعالیتونو دوام ورکوي. دا مرکه ییگ له پورتنی متن سره یوحگای د طالبانو نظام ترؤنکگیگدو نادیگ اته میاشتیگ وروسته هیلیگ د ۱۳۸۱ل کال ۳ کگنگه کیگ خپره شویگ ده چیگ دلته ییگ تاسو لوستو ته رابولو:

**که تر هرخگه دمخه د افغان نشراتي مرکز یا میأیا سنتگر د فعالیتونو نچوؤ راته وو ایئ أیگره مهرباني به مو وي؟**

افغان نشراتي مرکز له پنځګلسو کلونو را په دېخوا د پاکستان په صوبه سرحد کې د ويډيو ، عکاسۍ او د خبرونو د تګولو په برخه او همدا رنګه دېو شمېر لنډو موديو کورسونو او راډيو تلويزيون د انستيتيوټ په دايرولو کې خپل فعاليتونه ترسره کوي، په دې موده کې مو تقريباً دريو زره ساعته ويډيويي مطالب د افغانستان له (۲۹ ) ولايتونو نه راټول کړي دي، دغه ويډيويي مطالب يوازې په جګړو کې يا مهاجرت پورې اړه نه لري، مواږ هغه موضوعات چې په افغانستان کې منځته راغلي لکه شګوونه او روژنه، کرکيله، روغتيا ، عادي ژوند او همدا اول د خلکو مهاجرتونه، جګړې او ځينې نور په دغه ارتباط باندې مواږ ويډيويي مواد د افغانستان له (۲۳۲ ) ولسواليو نه راټول کړي دي.

د عکاسۍ په برخه کې مو تقريباً يولکو پنځګوس زره رنګه، تور او سپين عکسونه ، اولتر ايکسايلأيدرز او همدا اول (۲۰۰۰ ) ساعته راډيويي مطالب په خپل ارشيف کې ساتلي او همدا سې مو نورو راډيو ګانو ته ورکړي دي. زمواږ د لنډيو موديو په کورسونو کې تقريباً دريو سوه شپيګته کسه خبريالان، دريو سوه شپيګته کسه کمره مينان روزل شوي، چې ځينې يې اوس عملاً د افغانستان راډيو تلويزيون سره کار کوي او يو شمېر يې په غير دولتي موسسو کې کار کوي، د افغانستان د راډيويي تعليماتو انستيتيوټ چې تقريباً په ۱۹۹۰_۱۹۹۱ کې يې دوه دريو دورو شاګردان فارغ کړي، چې ددوی

شمیگر هم (۴۰ ) تخنیککگرانو او خگلویگشگتو پروأیوسرانو ته رسیگإي، ددغه انستیتیوت موده یو کلنه ده چیگ زیاتره هغه استادان چیگ په کابل کیگ د ژورنالیگزم په خگانکگه کیگ تدریس کوي، له موإ سره همکاري لري. دلته تقریباً هر کال (۲۰ ) کسه پروأیوسران، شل کسه تخنیککگران روزل شوي دي.

تر دیگ وروسته کله چیگ په افغانستان کیگ د طالبانودوره وه زیاتره مو د عکاسة، ویدیویي فعالیتونه نه درلودل، د افغان نشراتي مرکز یو شمیگر نوریگ پروژیگ لکه دمیأیا یانیگ د أله بیزو رسنیو سرویگ کول، په افغانستان کیگ دا معلومول چیگ د افغانستان خلک کومیگ راأیو کگانیگ اوري او خپل ورحگني معلومات له کومو منابعو خگخه لاسته راوؤي. موإ تقریباً دریگ حگلي پر ۱۹۹۰ پر ۲۰۰۰م کال او اوس دریگ میاشتې مخکیگ تقریباً دوه زره غوشگتنلیکونه چیگ د افغانستان خلک ورحگني معلومات له کومو منابعو نه ترلاسه کوي، ترتیب کؤي، بیا په دغو منابعو کیگ کومه سرچینه زیاته اوري، کوم اخبار زیات لوستل کیگإي، کومه مجله په خلکو کیگ محبوبیت لري، له دیگ سرویگ سره موإ دعامه افکارو سرویگ په افغانستان کیگ کوو، چیگ پر ۲۰۰۰ زرم کال تقریباً شپإزره غوشگتنلیکونه موإ د افغانستان د راتلونکو حالاتو، شگوونیگ او روزنیگ لپاره ترتیب کؤي په تیگره بیا په دیگ سرویگ کیگ موإ جوته کؤه چیگ د افغانستان خلک د شگحگو له کار سره خگومره علاقه لري، یانیگ

واقعاً دوی غواؤي چیګ ددوی لونګیګ شګوونحګي ته ولاؤیګ شي، ددوی لونګیګ په دفاترو کیګ کار وکؤي.
دغه سرویګ کګانیګ چیګ موإ سره پرتیګ دي له دیګ سره موإ یو شمیګر کګردي میګزونه چیګ تقریباً له خګو کلونو را په دیګخوا په نؤیوالو راأیو کګانو په تیګره بیا بي بي سي، امریکا غإ همدا اوس د ازادة راأیو، دغه کسان چیګ راأیو کګانیګ اوري له دغو راأیو کګانو نه خګه ترلاسه کوي، ددغوراأیو کګانو کګتګیګ خګه دي، یانیګ دغه راأیو کګانیګ خګه شباهتونه او توپیرونه سره لري. په دیګ اؤه مو یو شمیګر کګردي میګزونه دایر کؤي او بیا ییګ نؤیوالو منابعو ته ورکوو چیګ په افغانستان کیګ میأیا خګومره رول لوبولای دی.

**دغو اثارو خو هغه وخت هم تاریخي ارزشګت درلود، خو د وخت په تیګریګدو سره به نور ارزشګت هم پیدا کؤي، ددیګ اثارو دساتنیګ او پالنیګ لپاره خګه ترتیبات شته؟**

هو ! دا أیګره شګه پوشګتنه ده، موإ ددیګ لپاره چیګ له دغو موادو نه د افغانستان حګوان کهول او هم هغه خګیګؤونکي چیګ غواؤي د افغانستان په تیګر شل کلن، خګلریشت کلن تاریخ حګان خبر کؤي، موإ د امریکیګ د ویلیمزکالج سره قرارداد کؤی هغوی موإ ته یو شمیګر وسایل رالیګإلي، موإ دا غواؤو چیګ خګه مواد چیګ په ارشیف کیګ لرو هغه دریګ کاپي کؤو، یوه کاپي خپل دفتر کیګ وساتو، یوه کاپي کابل پوهنتون یا د افغانستان راأیو

تګلویزیون په ارشیف کې وساتو، یوه کاپي باید په خارج کې او وسي او دا مو له مخکې نه هم ورکړې دي، چې مواد دغه مواد لرو، دغه ویډیوګانې دي چې هم په افغانستان کې افغانان او هم په بهر کې خلک تري ګټه اخلي.

**دې خګو کلونو کې چې تقریباً تر لسیزې نه زیاته موده وشوه، کومو نړیوالو اژانسونو ستاسو له موادو نه ډېره ګټه اخیستې ده؟**

موږ په شروع کې ډېر ځګانګګې درلودې، یانې پر ۱۹۸۲م کال کله چې موږ دا دفتر پرانیست پر **۱۳۶۵**ل کال کې موږ ډېرې هلې ځلې وکړې چې زموږ خبرونه، عکسونه، ویډیويي مطالب، نړیوال د خپلو رسنیو له لارې نشر کړي، په هغه وخت کې دا باور چا نه کاوه، د هغه وخت مشکل دا و چې تنظیمونه وو، دوی خبري اژانسونه درلودل، دوی فرهنګي کمیټې درلودې، دوی به مبالغه کوله، یو ټانک به یې سل ټانکه شګودل، یا دوی به مثلاً په یو جنګ کې ګټه وو، کله چې موږ په مسلکي معیار کار شروع کړ، نو موږ د یوې حادثې عکس، د حادثې ویډیويي فلم او د حادثې رپورتاژ درې واړه یوځای اژانس ته ورکول، یانې هغه څه چې په فلم کې و، هغه څه چې په عکس او خط کې و تګولو به له یو بل سره اړخ لګاوه. نو تر دې شپاړو میاشتو وروسته زموږ خبرونه پرانس پریس، نیوزلینډ، اسوشیټ

پریس ته ورسیگدل او حگینو نورو نؤیوالو اژانسونو له مواږ سره قراردادونه وکؤل او هغوی زمواږ خبرونه نشرول.

زمواږ زیات ویأیویي مطالب په لندن کیگ د I-T-M تگلویزیون له لاریگ او W-I-M له لاریگ خپریگدل، پخوا ویزنیوزو، اوس رویتگرنیوز دی، هغوی سره مواږ قرارداد کاوه، د ۱۹۸۸کلونو په شاوخوا کیگ کله چیگ CNNأکگر ته راووت، د اول حگل لپاره په دغه سیمه کیگ مواږ CNN سره هره اوونة دریگ دقیقیگ دنؤیوالو ساعتونو په نامه یو پروکگرام کیگ قرارداد وکؤ چیگ د افغانستان په باره کیگ به بییگ هره اوونی دریگ دقیقیگ زمواږ خلاصه خبرونه د خپل تگلویزیون له لاریگ نشرول، زیاتره زمواږ عکسونه د (سیلما) چیگ د عکاسة نؤیواله ایجنسي ده او په فرانسه کیگ ده، بلیگ (کمره کیس) په نامه چیگ په نیویارک کیگ ده دوی زمواږ عکسونه اخیستل او زمواږ ویأیویي مطالب زیاتره د ایران، چین، جاپان تگلویزیونونو او ددغو هیگوادونو له ورحگپانگو خگخه نشریگدل، خو زیاتره په دیگ وخت کیگ د امریکیگ غږا او بي بي سي له لاریگ خپریگدل.

## له نوي تحول سره زیاتره موسسیگ داخل ته انتقال شوي ددیگ مرکز د انتقال په باب ستاسیگ نظر خگه دی؟

له نیگکه مرغه مواږ هم د ۱۳۸۰ل کال په وروستیو شپو ورحگو کیگ هغه مهال چیگ زه کابل ته ولاړم هلته ما سرویگ وکؤه، چیگ مواږ خگنکگه کولای شو خپل فرهنکگي فعالیتونه له خپلو افغانانو ورونو سره اوږه پر اوږه په تیگره بیا په ولایاتو، ولسوالیو

او علاقه داريو كيګ سرته ورسوو ، بالاخره موإ پر ديګ بانديګ وتوانيګدو چيګ د اسد په مياشت كيګ د افغان نشراتي مركز اوونيزه (اراده) كابل ته انتقال كؤو ، اوس زموإ خپرونه (اراده) په كابل ښګار كيګ چاپيګإي او هلته ويګشل كيګإي او له هغه حګايه ننګګرهار، لغمان، كونړ، ميدان، هرات، كندهار او حګينو نورو ولايتونو ته ليګإدول كيګإي او په راتلونكي كيګ افغان نشراتي مركز هيله لري چيګ په راتلونكي نإديګ وخت كيګ يو چاپحګى هلته فعال كؤي او خپله ورحګپانګه به تقريباً د كابل له ښګار نه د هيګواد حګينو ولايتونو ته وويګشي، كله چيګ مو چاپحګى فعال كؤ، نو موإ يو بل پروګګرام هم لرو او هغه دا چيګ موإ خګنګګه كولاى شو چيګ محلي راأيو ګګانيګ فعاليګ كؤو ، يانيګ اوس خو أيګريګ راأيو ګګانيګ بي بي سي، امريكيګ غإ، ازادة راأيو او سهار په خير اوريګدل كيګإي، تقريباً زياتيګ راأيو ګګانيګ شته خو موإ كوشش كوو كه موإ وكؤاى شو افغاني پروأيوسران افغاني تخنيكګګران وروزو ، د افغانانو په مرسته افغاني ستګيشنونه جوؤ كؤو ، كه سبا ته دغه نؤيو اليګ راأيو ګګانيګ حګي چيګ زموإ په ملك كيګ حد اقل دومره راأيو ګګانيګ خو وي چيګ خلك ييګ واوري او خلك د راأيو له خپرونو نه محروم نه شي.

پـه افغانسـتان كيـګ د مطبوعـاتو لـه ازادة نـه خګـومره أاأمن ياست؟

زه دا عرض کولای شم، کله چیګ په یو ملک کیګ سیګستم نه وي، کله چیګ په یو هیګواد کیګ نظام نه وي، کله چیګ په یو ملک کیګ پر تګوپک باندیګ اتکا وشي، هلته هیګخګ أول ازادي نه شته. متاسفانه چیګ په افغانستان کیګ خګلریشت کلنیګ جکګؤیګ زموإ دغه تګول بنیادونه نؤولي دي او موإ ته په میراث کیګ یو ویجاؤ افغانستان، په اقتصادي، سیاسي او فرهنګګي لحاظ کمزوری افغانستان راپاتیګ دی، اوس موإ د نؤیو الیګ تګولنیګ په مرسته هخګه کوو چیګ موإ د مطبوعاتو د ازادة پر لوري ګګام واخلو، تر هغیګ چیګ د مطبوعاتو او نشراتو د ازادة په رنګا کیګ افغانستان یو سیګستم پیدا کؤي او په افغانستان کیګ قانون حاکم شي او تر هغیګ پوریګ چیګ په افغانستان کیګ قانون حاکم نه وي افغانستان کیګ سیګستم رامنحګته نه شي تاسو په دیګ برخه کیګ شګه پو هیګإئ دا مشکله ده چیګ موإ ووایو هلته د مطبوعاتو او نشراتو ازادي تظمینیګدلای شي.

**تاسو دلته أیګر کار کؤی، أیګره شتمني مو خوندي کؤیګ که دفتر تګول کابل ته انتقال کؤئ او خدای مه کؤه کو مه پیګشګه رامنحګته شي دا به أیګره غتګه ضایعه نه وي؟**

اوس له نیګګه مرغه د افغانستان راتلونکیګ دنؤة له راتلونکیګ سره غوتګه شویګ ده، که چیګریګ نؤیوال بیا افغانستان له یاده وباسي او افغانستان ته شا کؤي لکه خګنګګه

چیګ په تیګرو لسو کلونو کیګ بیګ کؤیګ وه، هر ملک، کګاونأیو هیګوادونو، او نؤیوالو له افغانستانه صدمه ولیده، زه هیله مند یم چیګ اول به کګاونأیو هیګوادونو په افغانستان کیګ له مداخلو او لاسوهنو خګخه، له بربادیو او تباهیو خګخه یو خګه پند اخیستی وي، نؤیوالو په تیګره بیا امریکا هم پر دیګ باندیګ معتقد شویګ ده چیګ په افغانستان کیګ سوله دمنطقیګ سوله ده، په افغانستان کیګ سوله د نؤة سوله ده، نو ددغیګ خوشبینیو په رنګا کیګ موإ وایو که چیګریګ له یویګ خوا موإ هغه افغانان چیګ دغه وطن ته غواؤي یو خګه کار وکؤي او له بلیګ خوا کګاونأیان زموإ په کورنیو کیګ چارو کیګ لاسوهنه ونه کؤي، نؤیواله تګولنه له موإ سره مرسته وکؤي، هیله ده چیګ هلته په تدریج سره یو باثباته هیګواد رامنحګته شي او هلته دغه فعالیتونه لکه خګنګګه چیګ تاسو اشاره ورته وکؤه، کوم چیګ موإ دلته کؤي چیګ دا په خپل وطن کیګ، په خپل نظام کیګ د خپلو خلکو په منحګ کیګ ترسره کؤو، زه فکر کوم دا به په راتلونکیګ کیګ زموإ تاریخ روشګانه ساتي.

اوس به راشو سیاسي أکګر ته! تاسو پر هغه وخت چیګ دلوییګ جرګګیګ خبره چا نه شوه کولای، د افغانستان د ملي زعامت د تګاکلو لپاره د لوییګ جرګګیګ غوشګتنه کوله، خو په بیګؤنة لویه جرګګه کیګ چیګ د افغانستان ملي زعامت تګاکل کیګده، تاسو حاضر نه وئ، ایا له

**لویې جرګې خګخه مطمین نه وئ او که کومه بله ستونزه وه؟**

متاسفانه موږ لکه څګنګه چې تاسو اشاره وکړه، ددغې لویې جرګې د کمیسیون له اعلان سره سم د خلکو په منځ کې یو اول نا امیدي رامنځته شوه، که څګه هم کوم کسان چې دغه کمیسیون ته پیشنهاد شوي وو، موږ یو بل سره شګه پیژندل، دوی دلویې جرګې له نوم سره حساسیت درلود، دوی له دموکراسۍ سره حساسیت درلود، نو دغه کسان چې کله انتخاب شول، په خلکو کې ددې کار عکس العمل ډیر منفي و او ما هم شخصاً په دغه ارتباط تر کومه چې زما له لاسه کېدل یو شمېر ورځپاڼو او نړیوالو اژانسونو سره خبرې وکړې، خو بدبختانه نړیوالې ټولنې او هغو هیوادونو چې غوښتل یې په افغانستان کې سوله راشي، هغوی ته داسې ویل شوي وو، چې په دغو شرایطو کې تر دې زیات شګه کمیسیون نه جوړیدای او تر دې قابل خلک په افغانستان کې نه شته، یانې نړیوالې ټولنې په تېره امریکایانو پر ډیرو غلطو معلوماتو باندې اتکا وکړه او اوس هم دوی پر غلطو معلوماتو اتکا کوي، له دې پرته یو شمېر خلک دي چې دا وضعه امریکایانو ته بل اول ښکیي، یانې په دې مانا چې د خپل اقتدار د دوام په خاطر دا هلې ځلې کوي چې امریکایانو، غربیانو او نړیوالو ته ووایي چې په دغو شرایطو کې واقعي لویه جرګه نه کېږي، په دغو شرایطو کې هغه افغانان چې

غواؤي واقعاً افغانستان ته خدمت وکؤي بیگرته نه راحگي، په دغو شرایطو کیگ د افغانستان بیا جوؤول اسانه کار نه دی، مواږ باید دغـو قوماندانانو او تګوپکسالارانو تـه موقـع ورکـؤو او همدغـه کسان چیگ دلته اوسیگدلي او له تنظیمونو او جنګګي ألو سره تـؤاو لـري دغـه کسان شـګه دي، نظر هغـو کسانو تـه چیـگ هغـوی سولیگ، دموکراسة او ثبات ته کار کوي، نو کله چیگ دغه أول معلومـات ملکګـرو ملتونـو، امریکایـانو او یـو شـمیګر نـورو اژانسونو ته ورکؤل شول، ما له دغه نظر سره مخالفت وشګوده او اوس هم زه په دیگ باور یم چیگ افغانستان أیګر رسیگدلي کسان لـري، هغـه تعلـیم یافتـه چیـگ پـه داخـل کیـگ دي او زده کـؤي او مسلکي خلک چیگ په ایران، پاکستان او اروپا کیگ دي، دوی تګول غواؤي چیگ په دیگ هیګواد کیگ و اوسي او خپل هیګواد ته خدمت وکؤي، یانیگ هیګخګوک نه غواؤي چیگ افغانستان دیـگ دیویـگ سـیمیگ او یـو ګګـروپ پـه کنتګـرول کیـگ وي، افغانستان دیگ له یو قوم سره وي، افغانستان د تګولو افغانانو کګأ کور دی. نو که پر دغه اساس هر قدم پورته کیګږي زه ورسره یم، زه ددوی په خدمت کیگ یم زه په سر او مال، په وینو حاضریم خو کـه چیګریـگ دغه تګول امکانات یانیگ زمواږ ملي منافعیگ دحګینو ألـو او اشخاصـو د شخصـي منـافعو پـه خـدمت کیـگ وي، زه هیګخګکله دغسیگ لوبیـگ جرکګیـگ، دغسیـگ سیګستم او اداریگ سره کار هم نه شم کولای او توافق هم ورسره نه لرم، خو یو

شی دی دا وطن پر ما حق لري زه حگان د دیگ وطن بچی کگنگم خگه چیگ زما له لاسه کیگإي هغه به کوم.

تاسو اشاره وکؤه په لویه جرکگه کیگ هغو خلکو کگأون کـؤی و چیـگ د لوییـگ جرکگیـگ لـه اصـل سـره ییـگ مخالفت درلـود ، نـو حگینیـگ خلـک بیـا دا خپلـه یـو بـری بولي حگکه هغه کسان چیگ د لوییگ جرکگیـگ لـه نامـه سره ییـگ حسـاسیت درلـود هغـوی هـم پـه دیـگ قـانع شـول چیـگ لویـه جرکگـه د افغانسـتان د سیاسـي مسـایلو یـوه اساسي حل لاره ده، همدا پرمختکگ بس دی چیگ اصل ومنل شو پـه بلـه لویـه جرکگـه کیـگ کیگدی شـي یـو خگـه زیات پرمختکگ وشي، تاسو خگه نظر لرئ چیگ بیگؤنة لویه جرکگه تر کومه حده مثبتـه وه او د راتلـونکي لوییـگ جرکگیـگ لپـاره مـو وؤاندیزونـه خگـه دي چیـگ کیفیـت ییـگ اوچت شي؟

زه غواؤم دومره عرض تاسو ته وکؤم چیگ پر ۲۰۰۱م کال موإ شپإ زره مرکیگ د افغانستان په دننه کیگ وکؤیگ، پـه شپإ زره مرکـو کیگ (۴۸۰۰) افغانانو یانیگ قـاطع اکثریـت د لوییـگ جرکگیـگ پلوي کؤیگ وه، په هغه وخت کیگ لا طالبان موجود وو، پاتیـگ دوه دریـگ سـوه کسـانو بـه د اسلامي شورا او حگینو هم نظر نـه وركـؤی، خـو (۴۸۰۰) تـر (۵۰۰۰) پوریـگ افغانـانو د هیگـواد پـه

کګوتګ کګوتګ کيګ يانيګ هغو افغانانو چيګ ددوی اواز چا نه و اوريګدلای، هغو افغانان چيګ په سياست کيګ شګګيګل خلک نه وو، دا هغه افغانان وو چيګ په **۲۳**کلونو کيګ ييګ د هر چا له لاسه ازار ليدلای و، خو کله چيګ ديګ پوشګتنيګ سره مخ شول چيګ له کوميګ لاريګ غواؤي د افغانستان مسئله حل شي، هغوی تګولو دلوييګ جرګګيګ لاره غوره بلليګ وه، نو دغه لويه جرګګه چيګ دايره شوه موإ غوشګتل هغه عظمت چيګ لوييګ جرګګيګ درلود او هغه مينه چيګ له لوييګ جرګګيګ سره افغانانو درلوده، بايد د هغه عظمت او هغيګ مينيګ پر بنياد دا لويه جګرګګه جوؤه شويګ وای، نه دا چيګ موإ ته غربيان د لوييګ جرګګيګ د جوؤولو دستور راکؤي، په ديګ چيګ لويه جرګګه زموإ عنعنه وه هغه د امريکايانو عنعنه نه وه، امريکايان پر ديګ باند يګ نه پوهيګدل، ملګګري ملتونه پر ديګ نه پوهيګدل، دا دملت غوشګتنه وه ما په خپله دغه غوشګتنه کؤيګ وه، افغان نشراتي مرکز دا سرويګ د امريکا بهرنيو چارو وزارت، د ملګګرو ملتونو حګانګګؤي استازي ته هم وؤانديګ کؤيګ وه، موإ نه غوشګتل چيګ د خلکو له ارزوګګانو او هيلو سره ديګ لوبيګ وشي، له بده مرغه د داسيګ کميسيون تګاکل او يا لوييګ جرګګيګ ته د هغو کسانو رابلل چيګ هغوی په ديګ جرګګه کيګ د ګګأون مستحق نه وو، يا په لويه جرګګه کيګ حګينو خلکو ته دا حق نه ورکول چيګ هغوی د خپل راتلونکي او د خپل ملت د زعامت په اؤه فکر وکؤي، دغه تګول دلوييګ جرګګيګ له

عملییـګ سـره مخالفتونـه وو ، دغـو شـیانو د لوییـګ جرګګیـګ اهمیت ته صدمه ورسوله، همدغه کسان چیګ اوس پـه کابـل کیـګ ناست دي، دوی د أاکتګر نجیب الله پرلوییـګ جرګګیـګ ریشـخند واهه، دوی د ببرک کارمل پر لوییـګ جرګګیـګ ملنأیـګ وهلیـګ، اوس خلـک وایـي چیـګ دغـه لویـه جګرګګـه د هغـوی د لوییـګ جرګګیـګ نـه هـم کمزوریـګ وه. زه پـه دیـګ خفـه یـم چیـګ لویـه جګرګګه خپلـه ګګناهکاره نه ده، لویـه جرګګـه خپلـه هـم محبوبیت لري او هم سپیګخګلتیا ، دا چیګ د خلکو غوشګتنه عملي نه شوه په دیګ موإ خفه وو. خو بیا هم نظر جنګګ تـه، نظر تجزییـګ تـه دا حالـت شـګه دی چیـګ حد اقـل دنیـا توجه کـوي، هلتـه سوله سـاتی حګـواک دی، هلتـه دیـو شـمیګر سـؤکونو او شـګوونحګیو دبیارغونیګ خبره ده او نوریـګ پروژیـګ دي، امیـد دی چیـګ پـه راتلونکو انتخاباتو کیـګ دغـه ازادي افغانـانو تـه ورکـؤل شـي او واقعـاً هـر هغـه خګـه چیـګ خلـک وغـواؤي هغـو تـه د عمـل جامـه واغوسـتل شـي، نـه دا چیـګ امریکـا خپـل فرمـایش ورکـؤي، نـه دا چیګ یو ګګروپ د پیسو پـه زور پـه دیګ کیـګ رامنحګتـه شـي، دا اوس زمـوإ او ستاسـو او دفرهنګګیـانو وظیفـه ده چیـګ مـوإ بایـد مخګیـګ تـر مخګیـګ خلـک پـوه کـؤو ، چیـګ خپـل اینده زعامت خګنګګه د ازادو انتخاباتو له لاریګ تګاکلای شي، نو زه فکر کـوم چیګ بیـا هـم مخګیـګ لـوی پـؤاو دی او دا أیګر کـار غـواؤي او دا خګـه چیـګ شـوي یانیـګ نظر جګګؤیـګ او تجزییـګ تـه، دیـګ لوییـګ جرګګیـګ تـه مـوإ تـرجیح ورکـوو او دا چیـګ اوس مـوإ پـه

داخل کیګ یو هلته کار کوو، هلته فعالیت کوو دا هم یو مثبت تګګی دی او د اینده په خاطر باید کار وکؤو، خو حګینیګ مسایل دي چیګ هغه موإ افغانانو ته د زیات احترام وؤ دي چیګ له هغیګ جملیګ نه لویه جرګګه ده، یانیګ موإ نه غوشګتل چیګ دلوییګ جرګګیګ تر نامه لاندیګ دیګ یوه فرمایشي جرګګه جوؤه شي، موإ غوشګتل واقعي لویه جرګګه جوؤه شي، لکه خګنګګه چیګ خلکو د طالبانو تر حکومت لاندیګ حګایونو کیګ هم د لوییګ جرګګیګ غوشګتنه کوله او په هغه وخت کیګ چیګ آن د لوییګ جرګګیګ نوم هم چا نه شو اخیستی، موإ داسیګ خلک لیدلي چیګ د طالبانو کوتک ییګ مانه خو د لوییګ جرګګیګ نوم ییګ اخیسته، خو هیله ده چیګ په اینده کیګ اصلاحات رامنحګته شي.

**تاسو ته خو ترتګولو شګه تجربه ده چیګ په افغانستان کیګ په شلو پنحګه ویشتو کلونو کیګ غتګ جنجال دا و چیګ هر ککګوند او تنظیم انحصار کاوه او د انحصار په نتیجه کیګ افغانستان أیګر تباه شو اوس هم په دولتي چوکاتګ کیګ زیات انحصار موجود دی، ددیګ انحصار دله منحګه وؤلو حل لاریګ خګه دي؟**

خبره دا ده چیګ په دغو ألو ألبازیو کیګ افغانستان هیګخګ ککګتګه نه شي کولای، موإ که داسیګ لإ سره مخکیګ لاؤ شو، کله چیګ شهید داود خان کودتا وکؤه او هغوی هم کوشش کاوه چیګ

یو شمیگر باوري خلک رامخته کؤي، یانیگ هغه کسان چیگ ده پیگژندل هغه رامخته کؤي او هغه کسان چیگ ده نه پیگژندل که خگه هم مسلکي وو، خو دده له حکومت نه د باندیگ پاتیگ شول، چیگ نتیجه بییگ موإ ولیده، کله چیگ د خلق دموکراتیک کگوند راغی، دوی هم له نورو کگروپونو سره پراخه ملي جبهه رد کؤه، ان نور خلک بییگ په راز راز نومونو له منحکگه یوؤل، اوس هم په افغانستان کیگ په هیگگخگ صورت سره یوه أله پرتگول افغانستان باندیگ حکومت نه شي کولای، یانیگ خلک دا حق نه ورکوي، خلک وایي چیگ په افغانستان کیگ د مسلکي کسانو یانیگ هغه کسان چیگ مسلکي پوهه ولري، هغه کسان باید دحکومت چاریگ په لاس کیگ واخلي، که دا مسلکي شخص هزاره وي، که دا پشگتون وي، که تاجک وي او که ترکمن وي، دا که هرخگوک وي پر دیگ باندیگ د افغانستان خلک باور کولای شي، نظر دیگ ته چیگ یویگ خواته یو کگروپ، یوه أله رامنحگته شي او بیا دې په دیگ أله کیگ مسلکي پوهه هم نه وي، نو زه فکر کوم ددیگ نتیجه به لکه دخلق دموکراتیک کگوند، لکه دغو تنظیمونو چیگ د جهاد په دوران کیگ یا له ۷۱ نه تر **۷۵** پوریگ په کابل کیگ وو د ددوی ترمنحگ خو هیگخگ نوعه اختلاف نه و.

اختلاف خو په دیگ کیگ نه و چیگ موإ داسیگ دموکراسي غواؤو، یا دا غواؤو یا هغه، اختلاف یوازیگ په دیگ کیگ و چیگ دوی هر یو انحصار غوشگته. نو زما په نظر یویگ ألیگ ته

په افغانستان کې حکومت کول دا أيکره ګرانه خبره ده، شګه خبره به دا وي چې خلکو ته مراجعه وشي او له خلکو هغه کسان چې هغوی کولای شي وطن اباد کړي، هغه کسانو ته په دولتي چارو کې، په حکومتي پوستونو کې ځای ورکړل شي، دغه يوازيني لاره ده، دغه مسئله چې خلک وايي پراخ بنسټه حکومت، د پراخ بنسټه حکومت اصطلاح باندې تقريباً ۱۴ کاله مخکې مونږ کار کړی دی، دا اصطلاح په هغه وخت کې رامنځته شوې، چې تنظيمونو ويلې هغه خلک چې جهاد يې نه وي کړی، بايد حکومت کې نه وي، هغه چا چې ټوپک يې نه وي ګرځولای بايد حکومت کې رانه شي، مونږ خلکو دا هلې ځلې پيل کړې چې نه جهاد يوازې ټوپک ګرځول نه دي، أيکر کسان دي چې هغوی مسلمانان دي، هغو کې عقيده شته، هغوی افغانستان باندې درديږي او دا اوس هم خدمت کوي، هغوی د کانديدو حق لري، هغوی د رايې ورکولو حق لري، دغه حق تر يې ځينو تنظيمونو اخيسته او مونږ د هغو تنظيمونو په مقابل کې وويل چې ديې کې بايد ټول افغانان سهم واخلي، خو اوس وخت د پراخ بنسټه حکومت نه دی چې مونږ وايو دا ددې او د هغه قوم حق دی طبعاً هغه مسلکي سړی چې هغه پوهه لري، د کارتجربه لري، هغه پر دې پوهيږي چې د قومونو ترمنځ ملي يووالی، ملي وحدت او ملي ثبات څنګه راولو، نو دا خو په تنظيمي يا په منطقه يي خبرو پورې هيڅ تړاو نه لري او په اوس وخت کې زه فکر کوم د پراخ بنسټه اصطلاح

هم نه په کاريګاږي، يوازينة اصطلاح چيګ اوس په افغانستان کيګ ورته بايد احترام وشي هغه د کدرونو ده، هغه د مسلکي کسانو ده، دغه کسان بايد رامنحګته شي، له هريګ خوا نه چيګ وي هرخګوک چيګ وي، پر دوی بايد اعتماد وشي، دغو خلکو ته بايد د حکومت چاريګ وسپارل شي، زه فکر کوم دا مشکل به تر يوه حده حل شي.

**د افغانستان د تګولو کورنيو او بهرنيو ستونزو په نظر کيګ نيولو سره د ديګ هيګوادراتلونکی خګنګګه ارزوئ؟**

تاسو پر ديګ پوهيګګاږئ د افغانستان خلک له جنګګ نه ستړي شوي دي، هيګخګ شريف افغان جنګګ نه غواړي، هيګخګ شريف افغان بيګ ثباتي نه غواړي، دويمه خبره داده چيګ په سيمه کيګ هم اوضاع فرق کوي، يانيګ په ديګ مانا چيګ کګاونډيو هيګوادونو په نوبت سره په افغانستان کيګ جګګړو ته لمن ووهله، خو تاسو د تګولو عواقب وليدل، شوروي اتحاد مو وليده، ايران تاسو وليده، پاکستان مو د سپتمبر تر حادثيګ وروسته وليده او همدا أول خپله امريکا او غرب د مخدره موادو مارکيتګونه او بازارونه، دغه د افغانستان د جنګګ عوامل او د هغه اغيګزيګ ويګ چيګ پر هغوی باندیګ پريګوتيګ ويګ، خو زه فکر کوم له يويګ خوا افغانان سوله غواړي له بليګ خوا نه د سيميګ په هيګوادونو کيګ يو تغير راغلی دی او هم نړيوال مجبور دي، يانيګ هغه شعار چيګ نن بيګ ورکوي چيګ په نړۀ کيګ جګګړه نه غواړو، تروريګزم نه غواړو، مخدره مواد نه غواړو، د دغو شيانو تقريباً په دغو لسو کلونو او يا په يوه حساب په درويشتو کلونو کيګ مرکزيت افغانستان و،

اوس نـو نؤيـوال مجبـور دي چيـګ خپـل شـعار تـه د عمـل جامـه ور
واغوندي او دا کار لومؤى له افغانستان نه شروع کؤي، افغانـان هم لـه
دوى سره مرسته کوي، سمه ده پـه ديـګ کيـګ شـک نـه شـتـه چيـګ د
کګوتو پـه شميګر افغانان پـه دغو جکګؤو، تروريـزم او مخدره مـوادو
کيـګ ککؤ دي، خو تر ۹۹ فيصدو زيات خلک سوليـګ، ثبات او ملي
مرکزي دولت ته، ملي وحدت او دخاوريګ بشپؤتيا ته ليګواله دي.

شـګاغلى حـاجي صـيب داود ستاسـيګ د مفصـليـګ او معلوماتي مرکيګ له امله ستاسو خګخه أيګره مننه کوو.

تاسو نه هم مننه

# زه جل وهلی یم باران ته اړیم

دا مرکه ما له خدای بښلي ننګیال صاحب سره د ۱۳۷۳ل کال په وروستیو ورځو کې کړې وه او د ۱۳۷۴ل کال د وري پر لومړۍ نېټه، له پښښوره خپرېدونکې ارمان جریدې په لومړۍ ګڼه کې خپره شوې ده. دا دی دلته یې قدرمنو لوستونکو ته په خپل آر متن وړاندې کوم.

اسحق ننګیال زموږ د هېواد پیاوړی او نومیالی شاعر دی، د ده په شعرونو کې ښکلا، مینه، عاطفه، تفکر او د شعر نورې ښکلاوې له ورایه ځلېږي. ننګیال تراوسه پورې د شعرونو څلور مجموعې (ډالۍ، سپېره ډاګونه او غورېدلي بزغلي، هغه شېبې هغه کلونه او څاڅکي څاکي) خپرې کړې دي، د شعرونو دوه مجموعې یې اوس چاپ ته تیارې دي. موږ په دې ګڼه کې له ښاغلي اسحق ننګیال سره لنډه مرکه کړې چې په ګډه یې لولو.



**پوښتنه: څرنګه چې ماته معلومه ده ستاسو په شعرونو کې د نورو هنري ښېګڼو ترڅنګ، عاطفه ډېره زياته ځلا او جلا مومي، ان کله کله د شعر پر فکري اړخ عاطفي خوا ډېره درنه وي، کېدی شي د دې خبرې لامل را په ګوته کړئ؟**

**ځواب:** ښايي ژوند مې پر همدغو ستنو ولاړ وي، ښايي ژوند مې همداسې وي او عاطفه مې په وينو کې ګډه شوې وي او هغه چې ډېر عاطفي نه وي زما په اند نه شي کېدی چې ډېر ښه شاعر شي. يوازې اند شعر نه دی، يوازې عاطفه او په همدې توګه له اند او عاطفې پرته تخيل او تخييل هم شعر نه دی، دا ټول بايد لاسونه سره يو کړي څو چې ښه شعر ترې جوړ شي. خو دا چې ستاسو په اند زما په شعر کې عاطفي برخه زوروره ده، هم تصادفي خبره نه ده، د خپل ژوند يوه کيسه درته کوم:

د اوړي يوه تاوده ورځ وه، په ډېره کې ناست وم، يوازې او تنها له خپلو سوچونو سره لوبېدم، چې يوه ماشوم چې په يوه لاس کې يې مړ ژواندی چرګ او په بل لاس کې يې تېره چاړه وه راته راغی، چې چرګ يې حلال کړم، نه مې غوښتل چې خپل لاسونه په وينو سره کړم، خو چرګ ناروغه و، مړ کېده او هلک ناري راته کولې، چرګ مې حلال کړ خو اوس اوس چې له هغې ورځې نه درې کاله تېر دي،

هغه چرګ مې خوب ته راځي. وسله وال وي په ټوپک مې ولي، چاړه ورسره وي حلالوي مې. په اوونۍ کې يو ځل داسې خوب وينم.

**پوښتنه: ځينې شاعران تر يو ټاکلي وخت پورې په ډېر سرعت سره وده کوي خو بيا ورو ورو د نزول خواته درومي په دې باب تاسو څه وايئ او علت به يې څه وي؟**

**ځواب:** څو کاله دمخه د افغانستان د ليکوالو په ټولنه کې د پښتو ژبې يوه سپين ږيري او نامتو شاعر خپل شعرونه لوستل او موږ کره کتنه پرې کوله، همدغه پوښتنه مې له هغه نه هم وکړه او ورته مې وويل: چې پخواني شعرونه يې شعرونه دي او د وروستيو کلونو شعرونه يې ببولالې، هغه راته وويل: هغه وخت يوه ځوانه او سمسوره ونه وم، چې ډېرې او خوږې مېوې مې راوړلې، خو اوس هغه زړه ونه يم چې مېوې مې اومې، بدرنګې او ترخې دي. هغه په دې باور و چې شعريت او هنريت د شاعر په ځوانۍ کې وي، خو کله چې زوړ او کمزوری شي، شعر يې هم ورسره زوړ او کمزوری شي. خو زه په دې ټکو باور نه لرم. شاعر چې زوړ شي، د ژوند د هرې ورځې په نوې کېدو سره يې بايد شعر نوی شي او کله چې مړ شي بايد شعر يې هم د کليمې په رښتيني مانا تکميل شي، خو د ژړا خبره داده، چې خبره يوازې په سپين ږيرو کې نه ده، زموږ ډېر زلمي او ځوان شاعران د يو څه مودې لپاره داسې راوټوکېدل چې زموږ د سبا هيلې يې هم له

ځانه سره وټوکولې، خو هغوی ډېر ژر د شهرت، شعريت او هنريت له اسمانونو راولوېدل او ډېر ژر يې بېرته په خاپوړو پيل وکړ.
سوچ کوم چې يو علت دغو ځوانو شاعرانو ته به بېځايه لاس پړه کونو کې نغښتی دی او زموږ يو شمېر نامتو شاعران همدا چې د شهرت پوړيو ته ورسېږي سوچ کوي، چې منزلونه او سفرونه تمام شول. تنبل شي او غلي شي.

## پوښتنه: تاسو ولې ازاد شعرونه زيات ليکئ او غزل کم؟

**ځواب:** کله چې الهام ذهن، زړه، لاسونه او پښې رانه واخلي او ويلو ته مې وهڅوي او قلم پورته کړم، په هغو شېبو کې زه دومره فرصت نه شم موندلی، چې د شعر په فورم سوچ وکړم، په هغو شېبو کې زه د شعر په سوچ کې يم، په هغو شېبو کې د فورم د ټاکنې واک له ما سره نه وي. زه جل وهلی يم باران ته اړ يم او ما ته دا مهمه نه ده چې باران په دښتو کې راباندې واوري او که په کوڅو کې.

## پوښتنه: ځينې شاعران د هنري شعر په نوم تکلفي او تصنعي نظمونه وړاندې کوي او ځينې نور د فکر او محتوا د ښه بيان په پلمه د شعر د لفظي ښکلا او هنري تلازماتو له راوړلو څخه ډډه کوي او يا کېدی شي له وسه يې پوره نه وي، ستاسو نظر په دې باب څه دی؟

**ځواب:** زموږ د پښتو نني شعر تر ټولو لویه ستونزه همدا ده. یوه خیرې او زړه لمن مو مخې ته پرته ده. یوه خوا یې ګنډو، بله خوا یې رانه خیرې شي. ددې لپاره چې د شاعرانو په منځ کې ځان مهم، هوښیار او نوښتګر وښیو، تصنع ته لاس اچوو او کله هم چې وغواړو د تعهد نغاره سینې پورې وتړو هنریت او شعریت رانه هیر شي. خو اصلي ستونزه داده چې موږ تراوسه شعر نه دی پېژندلی، موږ اکثره په دې هکله ((بېسوادان)) یو. یوازې لیکلو ته مو ملا تړلې، لوستلو ته ړانده یو.

## پوښتنه: د خپلو شعرونو د ودې له بهیر څخه راضي یې؟

**ځواب:** نه، هېڅکله هم نه. زه چې ځان ته ګورم او خپلو هستونو ته ګورم سوچ کوم، چې هېڅکله به شاعر نه شم، زه لا تراوسه شاعر نه یم شاعر ګوټی یم.

## پوښتنه: کېدی شي د خپل شاعرانه ژوند یوه خوږه او یوه ترخه خاطره راته بیان کړې؟

**ځواب:** خواږه خو مې په ژوند کې نشته، زه یې له ترخو هست کړی یم یوه خوږه کلیمه هم زما د ژوند په کتاب کې نشي لوستلی. خو زه چې د ترخو درمند یم کومه ترخه دانه به دې مخې ته کېدم؟ خو اوس اوس کومه خبره چې ځوروي مې او موسکاوې مې راته وژني دا دی چې زه په خونړي کابل کې د شعر اورېدونکی نه لرم، لکه دمخه مې

چې وویل: زما د شعر اورېدونکي دېوالونه دي. زه مې شعرونه دېوالونو ته اوروم. ماته به له دې نه بله ترخه خاطره څه وي؟

**پوښتنه: د لغمان د شاعرانه سیمې په باب چې تاسو پکې رالوی شوي یې او هم په دې سیمه کې د ډېرو شاعرانو د تولېدو علت او د خلک د شعر خوښوونې او ادبپالنې په باب غواړم ستاسو له نظر څخه خبر شم.**

**ځواب:** رښتیا خبره داده چې که زه شاعر یم، نو لغمان شاعر کړی یم. دا ځکه چې لغمان شاعر دی، لغمان ښکلا ده او لغمان په خپله د شعر الهه ده. د هغه ځای غرونه شاعران دي، سیندونه یې شاعران دي او پولې، لښتي یې شاعران دي، خلک یې خو پرېږده، او که شعر، ښکلا، ادب او ادب پالنه له لغمانه واخلې، خو په یوه توت هم نه ارزي؛ په لغمان کې له دو پرته نور څه دي؟

**پوښتنه: د یوه شاعر او لیکوال د ادبي شخصیت او ځاني شخصیت په باب ستاسو نظر څه دی؟**

**ځواب:** دا ډېره ستونزمنه پوښتنه ده چې ځواب ورکول ورته یو خروار کاغذ غواړي. خو همدا شېبه زما ځواب دادی، چې زموږ خوږې، سرې او ښکلې منې په کار دي، زه به هېڅکله د منو د باغ د عرض او طول او د منو د باغوان د نامه او کورنۍ پوښتنه ونه کړم.

زما منې خوښې دي، نه باغوانان، باغوان هرڅوک چې وي، وي دې،
زما پرې څه؟

# افغانستان یوې ملي ستراتیژۍ ته اړتیا لري

ښاغلی ډاکټر محمد ابراهیم شینواری د افغانستان یو ځوان لیکوال او د طب ځانګې یو دقیق ډاکټر دی. تراوسه یې په طبي او ټولنیزه برخه کې څو عنوانه کتابونه چاپ شوي او په لسګونو علمي لیکنې یې خپرې شوې دي.



د هیلې مجلې له پیله بیا تر دې دمه یې د هیلې په زیاتو ګڼو کې مقالې خپرې شوې دي. دا مرکه یې هم د هیلې د پرله پسې شپږم کال (۱۳۸۱) په څلورمه ګڼه کې خپره شوې ده، چې تاسې یې لوستو ته رابولو:

**له دود سره سم که د هیلې درنو لوستونکو ته خپل ځان ور وپېژنئ خوښ به شو؟**

تر ټولو دمخه د هيلي درنو لوستونکو ته سلامونه وړاندې کوم. د پېژندنې په باب بايد ووايم چې زه محمدم ابراهيم شينواری د کونړ ولايت د شيګل په شينکوړک کې زېږېدلی يم. لومړنۍ زده کړې مې په کونړ، جلال اباد او سروبي کې کړې دي. لېسه مې هم په سروبي کې لوستې ده او بيا له کابل طب څخه فارغ شوی يم. دا شپږ کاله کېږي چې د عامې روغتيا په برخه کې کار کوم.

## ليکوالي دې له کوم وخت څخه پيل کړه او اساسي علت يې څه و؟

ما ليکوالي د ښوونځي له شپږم ټولګي څخه پيل کړې وه، خو چې پر ۱۳۶۷ل کال پوهنتون ته ولاړم، له نورو ليکوالو سره د راشه درشې او ملګرتوب له امله مې په کې يو څه پرمختګ وکړ، علت يې دا و چې زما پلار به لا هغه وخت چې زه د ښوونځي په لومړي او دويم ټولګي کې وم، کور ته مجلې او کتابونه راوړل او د ليکوالانو نوم به يې ډېر درونند ياداوه، نو ما له هماغه وخته له کتاب، ليکوال او مطالعې سره شوق درلود او ليکوالان مې د ټولنې تر ټولو شعوري خلک او ليکوالي مې انسانانو او هېوادونو ته د خدمت تر ټولو غوره لار بلله.

## په پيل کې دې شعرونه هم ليکل، خو دا ډېره موده کېږي چې په مطبوعاتو کې دې شعرونه نه خپرېږي،

## شاعري دې پرې ايښې که څنګه او که پرې ايښې دې وي علت يې څه دی؟

هو ! ما څه شعرونه ليکلي دي، زه چې کله پوهنتون تـه لاړم، هلتـه زما ډېر نږدې ملګري اسمعيل يـون صيب، ممتـاز ارمـان صيب، لال پاچا ازمون صيب، تکل صيب او دغـه نور ځوان شـاعران وو، مـوږ همدا راز د اسحق ننګيال صيب، عارف خزان صيب او نورو شاعرانو ملګرو سره راشه درشه درلوده، نو دغه وخت له دوی سره پـه مباحثو او د شعر په باب مطالعې زه پر دې پوه کړم چې شعر پـه پـوره مانـا يـو ګران کار دی. شعر چې هنر، شعريت، پيغام، ښکلا ولري بايد پـه ډېـر زيـار وليکـل شـي، د شـعر لپـاره بايـد رياضـت او د نفـس د پـاکۍ مجاهده وشي. د فکري تمرکز تمرين وشي، د عـاطفې او احسـاس جذبه په ځان کې پياوړې شي او پر ژبه او الفاظو حاکميت پيـدا شـي. که څه هم ګرانو مشرانو استاد خالق رشيد او استاد هېوادمل صيب او زما پورتنيو يـادو شـويو ملګرو او نـورو دوسـتانو زه هڅـولم چې بايد شعر ويلو ته دوام ورکړم او يو ځل خو لا ما د ځوانو ليکوالانـو د کلنيو جايزو په لړ کې جايزه هم واخيسته، خو ما دا يقيني کړه چې زه د شـعر لپـاره دغـومره اړيـن رياضـت تـه وخـت نـه لـرم. ماتـه دا غـوره وبرېښېده چې خپلو خلکو او هېـواد تـه لـه علمـي لارو چـارو خدمت وکړم. د شعر اغېـزه دايمـي او تـل پـاتې هـم ده او ژوره هـم ده خـو زمـا تصميم داسې شو چې نور دوام ور نه کړم.

## ستاسو د لیکنو زیاته برخه د ټولنیزو- سیاسي مسایلو پر محور راڅرخي، ددې علت څه دی؟

زما د کتابونو موضوعات سیاسي نه بلکې طبي او ټولنیز دي او د مقالو ډېره برخه د ټولنیزو- سیاسي مسایلو پر محور راڅرخي. باید ووایم چې که څه هم زه د کوم سیاسي ګوند غړی نه وم او نه یم او د زده کړې څانګه مې هم طب دی، خو په تېرو دوه نیمو لسیزو کې ټولنیزو او سیاسي مسایلو دومره د افغان ولس پر ژوند محسوس او ملموس اثر کړی دی چې هر څوک په دغه باب فکر کوي، بحث کوي او ځان په کې دخیل ګڼي. د ارستو په وینا انسان یو سیاسي حیوان دی او هر انسان حق لري چې د خپل ژوند او سرنوشت د کلیدي مسایلو په باب خپل فکر وکړي او نظر څرګند کړي.

## په طبي برخه کې ستاسو یو لړ لیکنې او همدا راز د کتابونو سمون یو غوره کار ګڼل کېږي، تراوسه دې په دې برخه کې څومره کار کړی دی او د نور کار تکل هم لرې او که نه؟

دا زما یوه پخوانۍ هیله ده، چې ټول افغانان په خپلو برخو کې د لیکنو او ژباړو له لارې د هېواد د علمي، فرهنګي پانګې په شتمنۍ کې برخه واخلي، موږ ته دا موقع هله په لاس راغله چې زموږ ملګرو

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه جوړه کړه (البته دا کار موږ د خوشحال فرهنګي ټولنې له جوړېدو سره سم پلان کړی و.) ما له همدغو امکاناتو څخه په ګټه پورته کولو په خپله دوه طبي کتابونه تاليف او چاپ کړل او د طب د پوهنځي د استادانو او ځينو نورو ورونو (۷) عنوانه طبي کتابونه مې اډيټ او چاپ کړل.

البته ما يو دوه نور غير طبي کتابونه هم وژباړل چې د ملګرو په مرسته چاپ شوي دي. د دوام ورکولو په برخه کې بايد ووايم چې غواړم دغه کار ته دوام ورکړم او له نورو ملګرو سره هم تر خپله وسه مرسته وکړم.

## ستاسو په نظر د پښتو ژبې علمي کېدنې ته څه کول په کار دي؟

د پښتو ژبې علمي کېدنې بهير بايد د پښتو ژبې د پرمختيا له عمومي بهير سره يوځای پرمخ لاړ شي. زما په اند بايد دا بهير په لاندې برخو کې پياوړی شي:

### ۱- په دولتي چارو کې:

❋ په اساسي قانون کې د ژبې روا او معقول حق تسجيل شي.
❋ په دولتي ادارو او چارو کې شامله شي.

❋ پـه ښـوونځیو او پوهنځیـو کـې د زده کـړې او تـدریس ژبـه شـي (البته په هغو سیمو کې چې پښتانه اکثریت جوړوي او کابل کې دې دواړه ژبې پښتو او دري د زده کړې ژبې وي).

❋ په راډیو تلویزیون، خپرونو او مطبوعاتو کې دې خپل متناسب ځای ونیسي.

## ۲- په نا دولتي چارو کې:

❋ ازادې فرهنګي ټولني دې، دې کار ته ملا وتړي.

❋ فرهنګپال سوداګر دې ددې خدمت لپاره مرستې وکړي.

❋ شخصـي فرهنګـي موسسـې دې پـه دې بـاب نوښـتګر کارونـه ترسره کړي.

## تاسـو د هېـواد لـه سیاسـي او ټـولنیزو حـالاتو خبـر یاست، د افغانستان راتلونکی درته څنګه ښکاري؟

دا ډېره عامه او ګرانه پوښتنه ده، دا چې حالات کوم لوري ته ځي او څـه منځتـه راځـي پـه دقیـق ډول یـې ویـل ګـران دي، خـو عـامې نښـې نښانې داسې دي، چې افغانستان اوس عملاً د یوې ډلې پـه انحصـار کې دی او په راتلونکي کې به انحصار ونه چلېږي، نو طبیعي ده چې د یوې مدني ټولنې پر لور ګامونه واخیستل شي.

انحصار ځکه نه چلېږي چې موږ ته تجربه شوه، د خلقیانو حاکمیت دومـره انحصـاري و، چـې د ((انقلابـي شـورا لـه رئـیس)) څخـه تـر

((علاقه دار)) پوري د دوی ((ملګري)) ثابت شوي وو. ملت بې وسلې و، بهرنۍ مداخله ډاګيزه نه وه او ملت هم ويده و. ترې راوروسته د روسي لښکرو او برچو په زور ببرک کارمل هم دغه انحصار د ټينګښت لپاره هڅې وکړې، خو نتيجه يې ورنه کړه، دوی مجبور شول چې د ګورباچوف د ((نوی سياسي تفکر)) په تقليد ملي روغه جوړه اعلان کړي او لږ تر لږه په نظرياتي ډول له انحصار ګرۍ څخه تېرشي. بيا د مجاهدينو يوې ډلې او ترې راوروسته طالبانو هم د انحصار هڅې وکړې، خو تجربې ناکامې وختې نو اوس هم نتيجه نه ورکوي او دا په دې دليلونو چې:

ـ سره له دې چې امريکايان او نړيوال سوله ساتي په افغانستان کې فعال حضور لري، د هېواد په ډېرو سيمو کې د مرکزي حکومت او شمال ائتلاف امر نه چلېږي.

ـ شمال ائتلاف په خپله پر څو غير متجانسو ګروپونو وېشل شوی دی.

ـ د دوی په منځ کې د نظار شورا ظاهراً متحده ډله هم د رهبرۍ په فقدان اخته ده او تر مسعود وروسته د يو وړ رهبر د نشتوالي له امله دوی د يو موټي سازمان په توګه کار نه شي کولی.

ـ ملت د انحصار ګرو ډلو له اعمالو ډېر ستړی شوی دی او ذهناً دې ته تيار دی چې د انحصار ګرۍ پر خلاف له هغو ملي او ولسي

حرکتونو سره مل شي چې د اسلامي ارزښتونه او د افغانستان ملي ګټو ساتنه يې د کار په محور کې وي.

ـ نړيواله ټولنه هم وجداني مسئوليت لري او هم د خپلو ويناوو او ژمنو پر اساس مجبوربږي، چې د ډيموکراسۍ، قانونيت او پلوراليزم پر لوري د افغانانو د روا هڅو ملاتړ وکړي.

ـ بهرني هېوادونه (ايران، روسيه، عربي هېوادونه، پاکستان) په افغانستان کې متضادې ګټې لري او انحصار ګري نه غواړي، ځکه ورته مخالفين پيدا کوي چې دا بيا د هېواد په ضرر ده او د تباهۍ پر لور يې بيايي.

نو په لنډيز سره به ووايو د افغانستان راتلونکي کې د يوې مدني، ملي ټولنې د جوړېدو امکانات ډېر دي، خو په دې شرط چې ملي اشخاص او ځواکونه يو مدبرانه، له جرئت ډک سنجول شوی او منسجم خوځښت پيل کړي، دوام ورکړي او تر بري يې ورسوي.

## په افغانستان کې د سياسي انحصار د مخنيوي لپاره څه کول په کار دي؟

د سياسي انحصار د مخنيوي لپاره په کار ده چې تر ټولو لومړی افغانان د انحصار غوښتنې پر ځای پر يو ملي-اسلامي، غير انحصار طلبه ولسواک بديل فکر وکړي، اقدام ته راودانګي او منسجم او هدفمند کار ترسره کړي. دويم دا چې ملي اردو او ملي پوليس د يوې ډلې له اختياره ووځي.

له بلې خوا نړیوال پر دې قانع کړل شي چې انحصار غوښتونکي د دوی د اوږدې مودې ملګرتیا نه شي کولای او د ملت له نارضایتۍ سره د مخامخ کېدو په صورت کې له ستونزو سره مخ کېدونکي دي.

## ځینې کسان د افغانستان د بحران د اوږدوالي یو علت د یوې ملي ستراتیژۍ نشتوالی ګڼي، ستاسو په نظر اوس یوې اوږدې ملي ستراتیژۍ ته اړتیا شته او که نه؟

دا ډېره مهمه خبره ده که افغانستان پیاوړې ملي ستراتیژي درلودلای له دومره ستونزو سره نه مخ کېده. دا سمه ده چې زموږ سیاسي، جغرافیاوي موقعیت داسې دی چې د هر فاتح او زورور د هدف وړ ګرځو او باید له دې لارې خپلې نظر وړ سیمې ته ځان ورسوي، خو د یوې روښانه ملي ستراتیژۍ نشتوالی د بهرنیانو له بدو نیتونو سره مرسته کړې ده چې په اسانۍ په افغانستان کې نفوذ وکړي.

د افغانستان تېر حکومتونه په دې نه دي توانېدلي چې د افغانستان د ملي هویت، په ملي هویت کې د مرکزي ټکیو، ملي ژبې، ملي تاریخ، ملي ګټو، د نړیوالو ګټو او ملي ګټو ترمنځ د توازن، د اسلام د اساساتو د رول (نقش)، د اسلامي او ملي ګټو ترمنځ د توافق او توازن، فردي او ټولنیزو حقوقو او د پرمختیا او

سولې او ملي ټولنې لپاره د شعارونو او ستراتيژيو په باب يو واحد فورمول وړاندې او د ټول ملت توافق پرې واخلي.

افغانان تر دې وروستنيو ناتارونو وروسته بايد پر دې خبرو پوهېدلي وي:

ـ ګاونډيان زموږ له ملي عظمت سره لېوال نه دي او له موږ سره د خپلو ګټو د لومړي ګټلو په صورت کې معامله کوي.

ـ افغانستان بل بديل نه لري او د هر افغان ابرو يوازې په خپل کور کې خوندي ده. اوس نو ددې وخت دی چې افغانان پر يوې ملي ستراتيژۍ باندې فکر وکړي او د داسې شرايطو د رامنځته کولو لپاره هڅې وکړي چې ټول افغانان وکړای شي پرې توافق وکړي او د عملي کولو تعهد يې وکړي.

افغانان بايد د اوږدې مودې تاريخي او ټولنيزو واقعيتونو په دقيق تحليل سره د راتلونکي په باب پوخ فکر وکړي او پخه، اوږده، متوازنه ملي ستراتيژي جوړه کړي، چې له نړيوالو بهيرونو سره هم موازي وي.

## په افغانستان کې د ملي غورځنګونو د نه پرمختيا او نه برياليتوب علتونه څه دي؟

زما په نظر په دې کې څو خبرې مهمې دي:

ـ د اعليحضرت محمد ظاهرشاه په دوران کې حکومت يوه ملي پاليسي درلوده او کوم ګوندونه چې يې په مقابل کې جوړ شول، د

هغوی اکثریت له بهرنیو منابعو پیاوړي کېدل او طبعاً پر غیر ملي ایډیالوژیو سمبال او عملاً د ملت پر خلاف ولاړ وو.

ـ دولت نه په خپله کوم ملي ګوند او منسجم سازمان جوړ کړ او نه یې ملي سازمانونه حمایه کړل.

ـ بهرنۍ مداخله ډېره زیاته وه او له ملي ضد ګوندونو سره یې بې دریغه مرستې وکړې.

ـ د روسانو تر بریدونو تېري وروسته ټول ملي قوتونه مجبور شول پاکستان او ایران ته پناه یوسي، هلته هم د پاکستان حکومت او هم د ایران اخوندانو د ملي قوتونو په ځپلو کې خپل رول ادا کړ.

ـ ملي غورځنګونو خپل ولس ته نفوذ ونه کړای شو او د روښانفکرانو په وړو دایرو کې منحصر پاتې شول او ولس ته یې د خپل اسلامي هویت ډاډ ورنه کړ، له بلې خوا ځینو جهادي ډلو هم د ملت په منځ کې دوی د اسلام پر ضد او یا لږ تر لږه د اسلام پر وړاندې په بې تفاوته دریځ تورن کړل.

ـ ملي غورځنګونو د کمونیستي او جهادي ګوندونو په شان منظمه سازماندهي هم نه درلوده، نو دغه ټول ددې سبب شول چې په افغانستان کې ملي قوتونه ونه ځلېدل او بریالي نه شول.

## ایا اوس یوه پراخ ملي ګوند ته چې د ټولنې اکثره خواوې رانغاړي اړتیا شته او که نه؟

اوس ډېره اړتيا ده چې يو پراخ ملي- افغاني تحريک جوړ شي چې د ټول هېواد د بقا لپاره يوه اساسي فورموله ولري او د مشخص پروګرام او کړنلارې له لارې له تېرو تجربو څخه په استفادې د روښانه راتلونکي لپاره لاره خلاصه کړي.

دغسې يو پراخ تحريک ته اړتيا ډېره ده، خو له لاندې چلنجونو سره به مخ وي:

١- ايا ټول ملي او دموکرات قوتونه چې واحد افغانستان او د اسلام دين ته وفادار وي، تر يوه چتر لاندې راټولولای شي که نه؟

- دا چې اوس عملاً د افغانستان د اقليت قومونو په منځ کې د دوی د حقوقو د (دروغجنو ) مدعيانو له خوا ګوندونه موجود دي، دا ملي پراخ تحريک به له ټولو قومونو باکفايته، بادرکه او پر هېواد مين خلک راټول کړای شي که نه؟

٣- که دغه پورته کارونه وشي ايا پر يو ښه رهبر او با کفايته مشرئ به سره متفق شي او که نه؟

- دوی به د خپل پروګرام د حقانيت او جامعيت په باب بادرده او زده کړو افغانانو ته قناعت ورکړی شي شي او که نه؟

- او که دا هم وشي ايا وبه کړای شي له روښانفکرې دايرې د ولس د پراخو پرګنو، او ولسي او روحاني مشرانو ملاتړ ترلاسه کړي او که نه؟

۲- ایا دوی به نړۍ پر دې قانع کړای شي چې د داسې مسایلو اړتیا او هم امکان اوس تر هر وخت زیات دی او دا کار هم د افغانستان او هم د نړۍ په ګټه دی.

نو د اړتیا خبره خو حل ده، خو د امکاناتو پر خبره باید پوره بحث وشي. دقیق فکر، قوي او متین ګامونه ورته واخیستل شي. داسې چې د افغانستان د تاریخي او ټولنیزو واقعیتونو ټول اړخونه دقیق تحلیل شي. دقیق او ستراتیژیک پروګرام جوړ شي او په پوره تدبیر، حوصله، عزم، پوهه او جدیت دا کار پرمخ ولاړ شي.

## د راتلونکي اساسي قانون په باب ستاسو نظر څه دی، چې څه ډول قانون باید وي؟

د راتلونکي اساسي قانون په باب خو زموږ نظر په عام ډول دا دی چې باید د افغانستان خپلواکۍ، ملي هویت، ملي ګټې، د اسلام د سپېڅلي دین اساسات، د ترقۍ او دموکراسۍ لپاره تکل، د بشري حقوقو موازین، ټولنیز عدلت، اقتصادي پرمختیا، ملي یووالي او ورورۍ، ټولنیزه پرمختیا، ملي ښوونه او روزنه، د حقوقي نظام اساسات او ټول لوړ ارمانونه په کې تضمین او تسجیل شي. دا قانون باید د ټولو تېرو قوانینو د یوې بشپړوونکې نسخې په حیث وي او د تېرو قوانینو کمۍ پوره کړي او نوې ستونزې ونه زېږوي.

## ځینې کسان غواړي چې په اساسي قانون کې د فیډریشن موضوع راپورته کړي، ستاسو په نظر په افغانستان کې فیډریشن د افغانستان یووالي ته څومره زیان اړولای شي؟

موږ باید فډریشن مسئله په کلکه و غندو. دا د افغانستان او افغانانو پر خلاف د روسانو د وحشي ظلمونو او تېریو یو دوام و بولو او د افغانستان د ټولو خلکو په تاوان یې وګڼو.

زموږ خلک لا د افغان واحد ملت په یوه ملي لوښي کې پوره حل شوي نه دي او په دې نومونو د ملي نفاق او قومي او سیمه ییزو لانجو زړي له سره زرغونېدای شي. افغانستان واحد هېواد دی او باید یو پیاوړی مرکزي دولت ولري چې پر ټولو ولایتونو پوره کنټرول ولري. د افغانستان د خلکو ډېره لوړه فیصدي د زده کړې له نعمت څخه بې برخې ده، په تېرو جګړو کې ډېرې کینې او کرکې پیدا شوې دي او سره له دې چې تر افغانستان ښه بدیل د هیڅ قام او وګړي له پاره نشته، خود فدرالیزم دا ناوړه نظریه د مضر میکروب په توګه زموږ ملي وحدت او د خاورې یووالي له ګواښ سره مخ کولای شي، نو ځکه یې زه غندم او باید په اساسي قانون کې رد شي.

## د ملي ژبې مسئله په اساسي قانون کې څنګه حلېدی شي؟

زمونږ وړانديز دادی چې د ۱۳۴۳ل کال د اساسي قانون په شان دې پښتو د افغانستان ملي ژبه او پښتو او دري دې د افغانستان رسمي ژبې وي، مونږ غواړو په دې باب جنجال زېږوونکې تبصرې او مباحثې ونه شي او ګوندونه په دې باب د ملت له احساساتو سو استفاده ونه کړي، بلکې د ټولې نړۍ په شان په اصولي، معقول، متوازن او بې جنجاله ډول د ۱۳۴۳ل کال د اساسي قانون په شان عمل وکړي. ځکه هغه قانون د یوې ارامې فضا او پیاوړو اشخاصو د کار محصول و.

## د رسمي مذهب مسئله باید څنګه حل شي؟

د رسمي مذهب په باب باید مونږ پر دې توافق وکړو چې حنفي فقه دې د افغانستان رسمي مذهب ومنل شي، د دې لپاره ډېر دلایل شته:

ـ یو د افغانستان د خلکو قاطع اکثریت د حنفي مذهب پیروان دي.

ـ بل حنفي مذهب په اسلامي نړۍ کې د حاکمیت اوږده او روښانه تاریخ لري او ډېر جامع دی. (حتی په ځینو اسلامي هېوادونو لکه: سوډان کې سره له دې چې د حنفي مذهب پیروان اکثریت نه دي، خو د دوی دولتي چارې په حنفي مذهب چلېږي او علت یې همدغه د حنفي مذهب جامعیت دی.)

ـ په دې ډول به د مذهبي اختلافاتو مخنیوی هم وشي، ځکه که دویم مذهب په قانون کې شامل شو، نو بیا به د ټولو مذاهبو پیروان دغسې غوښتنه کوي.

ـ تراوسه د افغانستان خلکو د حنفي مذهب حاکمیت منلی و او څه ستونزه نه وه موجوده.

ـ خو باید مذهبي ازادي د هر چا لپاره موجوده وي او په قانون کې تضمین شي.

## زموږ په هېواد کې د مطبوعاتو ازادۍ ته څومره اړتیا ده؟

ازاد مطبوعات داسې دي لکه څوک چې په خپله خوله خپلې خبرې کوي او دا هر څوک غواړي، هېڅوک نه غواړي او نه شي کولای چې خپلې خبرې ونه کړي. د مطبوعاتو ازادي په هېواد کې د دموکراسۍ او مدني ټولنې له جوړېدو سره اساسي مرسته کولای شي او باید ټول افغانان ددې لپاره مبارزه وکړي، خو ازاد مطبوعات باید یوه قید ته راضي وي او هغه دا چې د افغانستان او اسلام پر ضد به خپرونې نه کوي.

## پر اوسنیو مطبوعاتو څومره د ازادو مطبوعاتو اطلاق کېدی شي؟

اوسني مطبوعات دوه ډوله دي: یو هغه چې په هېواد کې دننه خپرېږي: دا زیاتره د یوې ډلې او یوه شخص صفت کوي، رښتیا نه وایي، یا یې کم وایي، یا یې له ویلو څخه وېرېږي او یا هم وېرول

کېږي، خو اوس نوي نوي د يو بغاوت ننښې ښکاري او سړي ته دا ډاډ پيدا کوي چې مطبوعات د ازادۍ پر لوري درومي.

بل هغه دي چې له هېواده بهر چاپېږي او خپرېږي: هغه بيا په پوره ډول ازاد دي او هر څوک کولی شي د خپل زړه خبره په ښکاره ډول وکړي. په دغه دويم ډول کې بايد يوازې يو ټکي ته متوجه شو چې د افغانستان او د اسلام پر ضد بايد نه وي، ځکه بيا به د ازادو مطبوعاتو نوم بد کړي.

اوس د چاپ او خپرونو د اسانتياوو او کمپيوټري وسايلو د عامو الي له امله خپرونې ډېرې اسانې او ارزانې شوې دي او هر څوک کولای شي د ازادو مطبوعاتو په وده او ترويج کې فعاله برخه واخلي او بايد وايې خلي.

## ډاکټر صيب ستاسو له مرکې نه ډېره مننه.

ستاسو نه هم ډېره مننه.

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۶ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ دنیازیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زیږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولې دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لیسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۶ل کال له نوموړې لیسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بیرته دپښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه

کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنگه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لويې جرگې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرگې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرگې غړی، بیا د جرگې د غړو له خوا د بېړنۍ لويې جرگې دلومړي منشي په توگه انتخاب شو. استاد یون په دې جرگه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرگې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لويې جرگې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرگه

کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو. ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده دروسپارو، خو استاد یون ونه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد یون پر ۱۳۸۵ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکیلکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنیز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راډیویي او ټلویزیوني مرکو کې یې د واقعیتونو او حقایقو د څرګندیدو له امله د خلکو په زړونو کې ځای نیولی دی. که څه هم ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختي مخالفین دي. د هغه ملي او

ګټــورو نظریــاتو تــه هــم غلــط رنــګ او تعبیــر ورکــوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، او ډل شوي او دادی ستاسو مخې ته ایښودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی. استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې

يې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان د کلتوري ودې ټولنې) او (د پښتني فرهنګ د ودې پراختيا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو ليکوالو په لسګونو اثار، ايډيټ او چاپ کړي دي. دغه راز يې په سلګونو کورنيو مشاعرو، ادبي غونډو او سيمينارونو کې ونډه اخيستې ده، خپله يې هم په لسګونو مشاعرې، سيمينارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په يو زيات شمېر، ملي او نړيوالو کنفرانسونو کې يې په بشپړه توګه د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به يې د اثارو يادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړۍ شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دويمه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
|---|---|---|
| • هيلې | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • نيمګړي ارمانونه | د حيران شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا ياد | د سيمينار د ليکنو ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کليات | د استاد الفت نثرونه | دريېم ۱۳۸۷ |
| • سيندونه هم مري | د اسحق ننګيال شعري منتخبات | دويم ۱۳۸۷ |

ج- ژباړنې:

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  دپوهنوال روستارتره کي اثر دويم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنگي ميراثونو ته يوه کتنه
  د نينسي دوپرې اثر دويم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جگړې جنايتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دويم ۱۳۸۷

د- يونليکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو يونليک دويم ۱۳۸۷
- که يون دی يون دی د اروپا يونليک لومړی ۱۳۸۷
- دپښتاگون ترڅنډو د امريکا يونليک لومړی ۱۳۸۷

هـ- څېړنې او شننې:

- د محمدگل خان مومند اند و ژوند ته يوه لنډه کتنه دويم ۱۳۸۷
- استاد زيار د پښتني فرهنگ يو ځلاند ستوری دويم ۱۳۸۷
- دکابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي پښتو کتابښود دويم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنگ ته اوښتي زيانونه دويم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دويم ۱۳۸۷
- ساينسي پرمختياوې دويم ۱۳۸۷
- بېړنۍ لويه جرگه ولسواکي او زورواکي دويم ۱۳۸۷
- انديال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هيله د خپلو سريزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري يون لومړی ۱۳۸۷

- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- دکتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلېچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای(ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته دنور زغم او اوسېلې هیله لرم.

په درناوي
وفاالرحمن وفا
کابل-افغانستان

